# آیا اوسني طالبان

## د حنفیت پیروان دي؟


لیکوال:

عبدالصبور کندهاری

(حفظه اللّٰه و أعانه)



محرم الحرام ۱٤٤۱ هـ

# فهرست

# بسم الله الرحمن الرحیم

## سریزه:

د دین علم او پوهې ته شـا ګرځول او په ځای یې نورې داسې لارې غوره کول چې اصل یې نه په قرآن کې موندل کیږي، نه په نبوي سنتو کې او نه هم د صحابه کرامو په اعمالو او سـیرت کې نو دغه کړنلارې، خویونه او عادتونه بې له شـکه د فتنو پدې عصـر کې یو مسـلمان د ګمراهیو او هلاکتونو په لوري کشـولی او د ابد لپاره د الهي لعنتونو حقدار ګرځولی شي، نن په عامه توګه د جهل او ناپوهي د اعظمي سطحې او د اسـلام له علم چې هغه علم همغه د قرآن او حدیثو پیروي د صـحابه کرامو په فهم ده د بې خبري له امله خلکو د ډیموکراټیکو حکومتونو د سـوء علماؤ له ناکاره او باطلو فتواؤ پیروي غوره کړې، قرآن یې هیر کړی او د ا سا سي قوانینو کفري کتابچې یې په یادو حفظ کړي چې دغه کار ددې باعث ګرځیدلی چې د طاغوت عبادت خلک د دین په نوم ومني او له سمو لارو د ګمراهیو په لوري کاږه شي.

د ملا محمد عمر هغه صف چې د قتال او جهاد نوم یې له ځان سره حمل کاوه نن په دوهم او سـیکولر نسـل بدل شـوی، دوی دعوې د جهاد او حنفیت کوي او تطبیق د ډیموکراسـي او سـیکولریزم پداسـې حال کې چې امام ابو حنیفه رح له داسـې خلکو بیزاره او هغه داسې شخصیت نه وو چې له قرآن او حدیثو سره په ټکر دداسې افکارو

پیروي وکړي چې ا ساس یې د غرب الحاد او ریښې یې د دهریانو له افکارو خړوبیږي خو معاصر حنفیان چې په رأس کې یې طالبان ځانونه بولي په بې انصافي خپل شرکي او سیکولر اعمال هغه رحمه الله ته منسوبوي او د خپلو خیټو تأویلونه د هغه فقه بولي چې په الله قسم هیڅ مؤحد او مؤمن ته د برداشت وړ ندي.

د طالبانو دوهم نسل په لوړه کچه له حنفیت سره په ټکر کې مخ پر وړاندې روان ده او ددوی هیڅ عمل د امام ابوحنیفه رحمه الله له سیرت او د هغه د لارې له لارویانو سره تړاو نلري بلکې د غه ګمرا هان د نړیوال ډیموکراټیک دین پیروان ګرځېدلي چې د حنفیت له نوم څخه په استفادې غواړي خپله سیکولر تګلاره په حنفیت پورې وتړي او پدې ډول او د مذهب په نوم خلک په ډیموکراسي او سیکولریزم راټول او بیا خپل دغه کفر په اهل سنتو او حنفیت پورې وتړي نو له همدې امله مو لازمه وبلله تر څو په خلکو د حجت د أقامه لپاره یو کتاب د [آیا اوسني طالبان د حنفیت پیروان دي؟] په نوم ولیکو تر څو خلک د طالبانو په حیثیت پوه شي او اهل د هدایت لدې ګمراه صف څخه ځانونه لیرې کړي.

دغه موضوع مونږ ته خورا مهمه وبریښیده او هوډ مو وکړ تر څو د قرآن، سنتو، د صحابه کرامو په فهم او ورسره د امام ابوحنیفه رحمه الله د فهم په اساس د طالبانو په اعمالو، عقایدو او کړنو یو کتاب ولیکو او خلکو ته وښیو چې معاصر طالبان په

حقیقت کې د حنفیت نمایندګان نه بلکې دوی اوس د سـیکولریزم او ډیموکراسـي په نوي دین روږدي شوي ګمراهان دي چې حنفیت او اهل سنت ځنې بیزاره دي.

ددغه کتاب په صـفحو کې مو د معاصـر او نوي پاکسـتاني تقلید او حنفیت په اړه چې اسـاس یې له همغې آی ایس آی خړوبیږي لنډه تبصـره لیکلې او دا چې د معاصـر حنفیت او تقلید په مټ د پاکسـتاني سـوء ملا یانو له لوري د طالبانو له لارې ډیموکراټیک او سیکولر افکار موازي روان کړل شوي نو لازمه مو بللې تر څو د تقلید او ډیموکراسـي د حقیقت عنوانونه هم پدې کتاب کې پرلپسـې ولیکو تر څو د نن ورځې جهل، ناپوهي او ګمراهي واضـحه شـي چې نن کوم ډول کفر او ګمراهي په خلکو مسـلطه شـوې؟ همدارنګه دا چې اسـلام یو کامل دین ده نو د طالبانو د بې حیثیته سـیاسـي حیثیت په اړه مو هم بعضـې عنوانونه ځای پر ځاي کړي او د امام ابو حنیفه رحمه الله او نورو سلفو صالحینو او د طالبانو د اول نسل له بعضو مشرانو مو د هغوی خبرې نقل کړي تر څو روښانه شي چې نن طالبان د کوم فکر، کو مذهب او کوم دین پیروان دي؟! آیا دوي په رښـتیا هم د اسـلامي دین په لاره کې جګړې کوي او که دوی اوس د نړیوال لادینیت یا همغې ډیموکراسي پیروان دي؟!

الله سـبحانه وتعالی دې وکړي چې دغه کتاب د کشـرانو طالبانو او عامو مسـلمانانو د هدایت سـبب وګرځي، که له ما څخه پدې کتاب کې کومه تېروتنه شـوې وي نو هغه

به زما خپله تېروتنه وي او له الله سبحانه وتعالی څخه یې په اړه بخښنه غواړم، پرته له شکه یوازینی کامل او بې عیبه کتاب د الله  سبحانه وتعالی کلام قرآن عظیم الـ شأن ده چې هیڅ عیب او نقص نلري.

وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمدا وعلی آله وصحبه اجمعین

عبدالصبور کندهاري

محرم- ۱۴۴۱

# طالبان، وطنيت او حنفيت

وطنيت د ډيموکراسي او سيکولريزم تر ټولو لوی اصل او عمده ريښه ده چې د شتون له کبله يې ملتونه ټاکنو، پارلمانونو او د بين الملل ملحدو قوانينو ته ژمن کېدلی شي، که چيرې وطنيت نه وي نو ډيموکراسي او سيکولريزم تحقق نشي موندلی او که چيرې وطنيت نه وي نو د ملحدينو هغه اصل چې د تعلقاتو بنياد يې يوازې د وطن په نوم مکار انسانيت ته وي پلي کيدی نشي او وطنيت په رښتيا هم چې له معاصرو فتنو تر ټولو لويه فتنه ده او د الحاد دغه لويه ريښه تر ټولو بوينه او ګمراه کوونکې ريښه ده چې نن خلکو د اسلام په نوم سر ورته ټيټ کړی او نه پوهيږي چې د اسلامي امت د ټوټې کېدلو او فرقې کېدلو راز د وطنيت په همدې پليد فکر کې پروت ده، نن يوازې او يوازې د نوي سيکولر او ملحد دين [ډيموکراسي] پيروان ددغه پليد فکر مقلدين کيدلی شي چې امام ابو حنيفه رحمه الله لداسې افکارو او عقيدو بېزار او هغه يو مؤمن وو او د مؤمن له شأن سره هيڅکله نه ښايي چې تر دې کچې ځان د کفارو په تګلارو کې اوبه او له اسلام څخه خارج کړي.

دا چې وطنیت پخپل اصل کې د کفري ډیموکراسي یو اصل او ریښه ده نو بهتره بولم چې ددغه پلید فکر په جزئیاتو یو څو جملې ولیکم تر څو تاسو ته واضحه شي چې د وطنیت کفري فکر څرنګه یو مسلمان د کفر تر سرحدونو کش کولی او له اسلام څخه خارجولی شي؟

د وطنیت پرستي له امله وطن پرستان مجبور دي چې د کفارو لاندېني ذکر شوي غیر اسلامي اصول په ځانونو پیاده او په عمل کې د اسلام له اصولو څخه مخ واړوي:

## ❖ کفارو ته امن ورکول:

د وطنیت پرستی یو اصل داده چې هیڅوک حق نلري چې په بل وطن حمله وکړي او یا په مروجه اصطلاح هیڅوک حق نلري چې په بل وطن کې مداخله وکړي، دغه خبره د امارت قیادت په ډیر فخر او زور سره کوي او همدا چیغې وهي چې زمونږ جګړه یوازې تر افغانستانه محدوده ده او حتی د امریکې او اروپایي جزیرو د حفاظت احمق تضمینونه هم ورکوي چې هیڅا ته به اجازه ورنکړو چې له افغانستان څخه غربي هیوادونو ته مزاحمت وکړي، خو آیا پوهیږئ چې دد غه فکر او عقیدې په درلودلو یو انسان د الله عزوجل له کومو حدودو پښې اړوي؟

- د وطنیت د ســـیکولر عقیدې په اســـاس په بل هیواد د مداخلې نه کولو له امله مســـلمانان مجبور دي چې اقدامي جهاد پرېږدي، هغه جهاد چې الله ســـبحانه وتعالی یې په اړه امر کړی چې:
  وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ ۖ(البقرة : ۱۹۳) ژباړه: او له هغوی ســـره وجنګیږئ تر هغو چې فتنه پاتې نشـــي او دین (قانون، شـــریعت او حاکمیت په ټوله دنیا کې) یوازې او یوازې الله لره شي.

نو د وطنیت د عقیدې په درلودلو وطن پرست او سیکولر طالبان مجبور دي چې د الله سبحانه وتعالی لدې آیت څخه مخ وګرځوي او ورو سته له سولې [تسلیمي] د جهاد عظیمه فریضه تر شا پرېږدي او دوی به بیا د امریکې ماتوونکي او د شریعت تطبیقوونکي وي؟

کله چې د وطنیت سیکولر عقیدې ته لبیک وویل شو نو د دین د تطبیق هوډ به د صحابه کرامو د سیرت په اساس په توره او جهاد له طالبانو صلب وي او هغه مهال به د ډیموکراټیکو ګیډرانو په څیر یوازې ژړا، انګولا، مظاهرې او ټاکنې ورپاتې وي چې دوی به ورته ژمن وي خو افسوس د شغالانو لدې ډول ټول ژوند څخه د هغه مؤمن او مؤحد یوه لحظه ژوند زر ځلې افضل ده کوم چې له وطني سیکولر حدودو

په بغاوت په ټوله نړۍ کې د الله سـبحانه وتعالی په امر د شـریعت د تطبیق هوډ لري.

د امام ابوحنیفه رحمه الله شخصیت لداسې کفري حرکتونو، عقیدو او افکارو ډېر اوچت شخصیت او د همغو سلفو ایمان ته په کتو دا د هغوی له شان څخه ډېره لیرې خبره وه چې د حاکمیت په چوکاټ کې حتی د قرآن له یو لفظ څخه هم مخ وګرځوي، نو پدې کار طالبان له اسلامي او حنفي عقیدې څخه وتلي او سیکولر اصول یې خپل کړي چې دا سې بزدل رذیلان هیڅکله د امام ابوحنیفه رحمه الله لارویانو ته نشو منسوبولی.

- د وطنیت د عقیدې له درلودلو سره به ته حق نلرې چې له خپل سرحده ورآخوا د ظالم له لاسه کوټک واخلې او د مظلوم په لاس یې ورکړې بلکې ته به د قفقاز، چیچن، ایغور، بیت المقدس او بورما له ربړوونکو سره پخپل سکوت همکاري کوې څکه له همدې ظالمانو سره تا سو وعده کړې چې هیڅ مداخله به نه پکې کوې او پدې صورت کې الله سبحانه وتعالی څه ښه فرمایلي چې: وَإِنَّ الظَّالِمِينَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ ۖ وَاللَّهُ وَلِيُّ الْمُتَّقِينَ (الجاثية : ١٩) ژباړه: او ظالمان د یو او بل مرسته کوونکي دي خو د نیکو بندګانو مرسته کوونکی یوازې الله ده.

- د وطنیت د عقیدې په ټاکلو طالبانو د فلســطین، ایغور، چیچن، قفقاز، بورما او اندلس مسـلمانانو ته د نه ځواب ورکړ پداسـې حال کې چې همدا د مرضـي زړنو خاوندان او وطني ســیکولران ددغو مظلومو ځمکو د آزادي او هلته د قتال في ســبیل الله ننګونې اســلامي خلافت ته ورکوي او مونږ پرې ملامت بولي ســره لـدې چې همـدا ســیکولران د ورځې لس ځلې پخپلـه خولـه اقرار کوي چې فلسطین، ایغور، چیچن، قفقاز، بورما او اندلس به خپل کار کوي او مونږ افغاني سیکولران خپل!
- د طالبانو قیادت پداسـې حال کې د وطنیت سـیکولر عقیده اسـلامي بولي چې دوی به له افغانســتان څخه خارج مؤمن بندیان او د مؤمنو بندي خویندو چې د خالص اسـلامي دین د پیروي له امله بندي شـوي د آزادۍ د خبرې کولو اجازه هم ونلري پداسې حال کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مؤمنو بندیانو د خوشـــې کولو امر خپل امت ته کړی او فرمایلي یې دي چې: أطعموا الجائع، وعودوا المریض و فکوا العاني [رواه البخاري] ژباړه: وږي ته طعام ورکړئ، د مریض عیادت وکړئ او بندي مؤمنان له بندونو آزاد کړئ.

خو تش په نوم حنفیت ته منســوب ســیکولر طالبان د وطنیت د عقیدې په منلو مجبور دي چې د خپل حاکمیت په سطحه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دغه مبارک امر ته شا وګرځوي او د بې دینۍ په چوکاټ کې او د حنفیت د مذهب له نوم

ځخه په اســتفادې یوازې پخپله محدوده خاوره کې د ســولې په نوم له امریکایي نظام سره اوږه په اوږه او د کفري اصولو په اساس حاکمیت وچلوي، لدې حاکمیت سره به د ا سلام نوم اخیږ ستل کیږي خو په بدعتونو، خرافاتو او په سیکولر ا صولو مشمول چې د امام ابوحنفیفه رحمه الله شخصیت لداسې ګمراهو او رذیلو تګلارو ځخه بیزاره او ځوک چې ورته عادات خپل کړي ټول اهل ســنت والجماعت ځنې بیزاره دي او پرته له شــکه چې دا به د کفارو غلامان او د هغوی د افکارو پلي کوونکي وي.

- د وطنیت په عقیدې روان ســیکولران که ځانونه بیا هم د اســلام په نوم میرني وبولي نو دوی به د نړیوالو وحشــیانو او کفارو په ضــد یوازې د لفظي انتقاد حق ولري هغه به هم کفارو ته هغه مهال د منلو وي چې د بین الملل په ســیکولر اصولو برابره خبره شي، کفار پرې راضي شي نو وروسته له هغه به منل کیږي نو کله چې په یوه خبره ســتا او د کافر رضــاء وي نو هغې خبرې ته به د اســلام له لوري کوم امتیاز حاصل وي؟ پداسې حال کې چې الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ (البقرة : ۱۲۰) ژباړه: او له تا سو ځخه به یهود او نصارا هیڅکله راضي نشي مګر دا چې تا سو ددوی د دین [قانون او تګلارې] متابعت وکړئ.

- د وطنیت د عقیدې په منلو به د وطن په داخل کې د تعلقاتو بنیاد یا همغه ولاء او براء یا د الله لپاره د دوستي او د الله لپاره د دښمني بنیاد به دین، اسلام او تقوا نه وي بلکې پدې چوکاټ کې به د دوستي بنیاد د سیکولر اصولو په اساس همغه افغانیت وي په کوم کې چې یوازې د دهریانو د مکار انسانیت شعار پورته کیدلی شي.

کله چې د تعلقاتو بنیاد د دین، اسلام او تقوا په ځای یوازې وطنیت شي نو بیا به وطنپرست خائنان مجبور وي چې خپل وطندار هندو ته هم د وطن په احترام لاس په نامه ودریږي پداسې حال کې چې الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:
وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ (آل‌عمران: ١٣٩)
ژباړه: او تاسو [پدې شرط] بهتر یاست که چیرې مؤمنان واوسئ.
خو وطن پرست مفسدین به د اسلام په نوم د الله سبحانه وتعالی د پورته مبارک آیت په تکذیب [نعوذبالله] شعار پورته کوي چې زمونږ په نزد بهتر او اعلی هغه ده چې زمونږ د خپلې خاورې وګړی یا وطندار وي نوره مهمه نده که دغه وګړی هندو و او که مشرک شیعه او رافضي خو د وطن له وجې باید له نورو بهتر او افضل وبلل شي.

- دا چې په سیکولر وطنونو یا همغو جمهوري پنجرو کې د حلالو او حرامو د ټاکلو واک د اکثریت له مخې د پارلمان د هغو فرعونیانو وي چې خلکو ته شریعت او

قانون جوړوي نو د وطنیت د اصــولو پر بنیاد دغه حق په یو وطن کې هیڅکله کوم مشــخص دین ته نه ورکول کیږي بلکې د خلکو د نفســي خواهشــاتو په اساس دغه اصل پلی کیږي او که په یو وطن کې خلک د هر دین پیروان وو نو کاملاً حق به لري چې پارلمان ته خپل فرعون او خپل وکیل مخې ته کړي تر څو مربوطه وطن ته د پارلمان له شــرکي اډې قانون یا همغه د حلالو او حرامو لارې وټاکي، نو په افغانســتان کې هندوان هم شــته، دهریان، عیســویان او صلیبیان هم مخ په زیاتیدو دي او د شیعه ایزم هغه مشرکان هم په زیاته کچه موندل کیږي چې صــحابه کرام تکفیروي نو تاســو خپله فکر وکړئ چې پدې وطن کې دغه غیر اسلامي ډلې به تا سو ته څرنګه یو اسلامي قانون جوړ کړي پداسې حال کې چې ستاسو له لاسو به وسلې اخیستل شوي وي! او تاسو به څرنګه وکولی شئ چې د خپل وطن د قانون جوړونې یا همغه پارلمان په چوکیو کې کافر ته واک ورنکړئ؟

نو لدې لحاظه هم د وطنیت پلیده عقیده د کفر او فســق ریښــه ده چې نن د امارت جاهل قیادت د اســلام په نوم منلی او له همدې کفري نوم څخه خپلې وینې څاروي او بیا خپل همدغه کفر د حنفیت په نوم خود ســاخته دین کې رانغاړي او د خودساخته دین نسبت څکه ورته کوم چې معاصر حنفیت د امام ابوحنیفه رحمه الله له عقیدې سره د کفر او ایمان تر پولو توپیرونه لري.

نو ددغو عقایدو په درلودلو معلومه شـوله چې د طالبانو عقیده د آی ایس آي له لوري اپډیټ شـوی یو بېل مذهب ده چې په اسـاس یې جګړه په کفري اصـولو بناء او تر یو معین وخت او محدودې خاورې پورې تړلې چې داسـې جګړو ته د اسـلام په قاموس کې هیڅکله ا سلامي جګړې نه شو ویلی، فتنه اچوونکي طالبان فکر کوي چې یوازې له امریکې سره هغه هم تر هغه وخته پورې چې دوی دلته وي جګړه کول جهاد ده او په دوی ا قدامي جګړې یعنې ددوی په ځمکو حملې کول مطلقې حرامې او حتی ددوی له وتلو وروسته ددوی حفاظت هم په دوی فرض ده او ځکه هم ددوی د جزیرو د حفاظت احمق تضـمینونه ورکوي او په رښا ورڅ چیغې وهي چې مونږ به بیا هیچا ته [داعش ته] اجازه ورنکړو چې امریکې ته څه زیان ور ورسوي.

نو کله چې دداســې ټیټو، رذیلو، بزدلو، ډارنو او غیر اســلامي روحیو درلودونکي دغه امت ته ځانونه منسـوب کړي او په همدې رذیل فکر د امت آینده نسـل هم وروزي نو څوک به آخر شرق او غرب په محمدي توره فتح کوي؟ څوک به فلسطین آزاد کړي؟ څوک به د ایغور او بورما مسلمانانو ته ځان ورورسوي؟ او څوک به پدې آخره زمانه کې د مکې معظمې محمد مهدي ته ملاتړ مجاهدین ورولیږي پداسې حال کې چې افکار او عقیدې تر وطني کرښو محدودې ساتل شوي وي؟

د امارت د وطنیت عقیده هسې سطحي خبره نه بلکې پدې عقیده کې د کفر، الحاد او ډیموکرا سي د تطبیق شیطاني رازونه نغښتي چې دغه ګمراهان نور مؤمنان هم له ځان سره د کفر ګردابونو ته ټیل وهي، د امارت د وطنیت له عقیدې د دجال بویونه محسوسیږي او دوی چې له نړیوالو دجالانو سره پدې کچه غیر شرعي جوړښتونه لري او ددوی عادات او اصول په ځانو مني نو آخر به له دجال سره ددې امت له خائنانو څوک او څوک یو ځای کیږي؟ آیا فکر کوئ چې د امام ابوحنیفه رحمه الله په څیر سلفو به همداسې فکر او عقیده درلوده لکه نن چې د وطني امارت قیادت ځانونه ورته منسوب بولي؟

هیڅکله نه! که همدا نن امام ابوحنیفه رحمه الله ژوندی وای نو د طالب د قیادت په څیر له ډیرو مرتدینو به یې غاړې پرې کولې او له دوی څخه به یې د حقیقي بیزاري اعلانونه کول، ان شاءالله.

## د طالبانو حنفيت او له ډيموکراټانو سره ګډ ددوی آينده حاکميت

له قطر څخه د طالبانو د دوهم نسل قيادت په رو ښانه ځپله تګلاره وا ضحه کړه چې ددوی په خبرو کې هيڅکله د ډيموکراټيک الحاد په ضد کوم حس ونه ليدل شو بلکې دوی اقرار وکړ چې مونږ به پخپل آينده بين الأفغاني حاکميت کې اساسي قانون ولرو، نو کله چې اساسي قانون جوړيږي دا به د پارلمان په موجوديت او د اکثريت د رأيو او مشورو په مټ جوړيږي او دا کار نده ممکن مګر دا چې د ډيموکراټيکو انتخاباتو له لارې تر سره شي خو اوس مهم سوال داده چې آيا د طالبانو په شمول د سيکولر وطنونو اساسي قوانين اسلامي کيدلی شي؟!

د مسکو په غونډه کې د کفارو له لوري د طالبانو تسخير شوي قيادت بيا هم همغه څرګندوني وکړې په کومو چې دوی ډيموکراټيک اصول پلي کول غواړي، ټولې همغه وطني او د الحاد په اصولو بناء خبرې وې چې د تسليمۍ د بهير د ګړندي کولو لپاره دوی پخپل صف اورولې خو کومه خبره چې تازه وه هغه د اساسي قانون خبره وه چې د طالبانو ګمراه قيادت په غربي مکر او فريب د افغاني کيدو او اسلامي کيدو غوښتنه وکړه چې ددغه ټکي په ليدو ماته په ۲۰۰۲م کال کې د امريکايانو هغه مکر را ياد شو چې نوي افغاني ډيموکراټيک نظام ته يې د اسلام په نوم اساسي قانون د مشهور

مفسر قیام الدین کشاف په امضاء تصویب او جوړ کړ تر څو د خلکو دیني احساسات خنثی او ملحد حکومت ته یې د اسلام په نوم ژمن کړي.

راځئ چې الله مکړه د طالبانو په څیر داسې فکر وکړو چې اساسي قانون به دوی اسلامي کړي نو آیا بیا هم دغه عمل ته د الله د ویرې له کبله یو عمل ویلی شو او که نه؟!

نه هیڅکله نه! ځکه:

- که کومې اسلامي مادې پدغه قانون کې طالبان ځای پر ځای کړي نو ددې علت به بیا هم د الله د حکم وجه نه وي بلکې د عباس ستانکزي د زیرې په شکل یوازې نمایشي او د خلکو د تصویب له وجې به وي.
دا پدې معنی چې کله هم طالبان په وطني ډیموکراټیک نظام ورننوځي نو ددغه قانون مادې به بیا هم انسانان او اکثریت پاس کوي چې پدې صورت کې هیڅ دیني تقدس نده ورته حاصل ځکه دا به د اکثریت له وجې منل شوی وي نه لدې وجې چې دا د الله عزوجل امر ده.
- امریکا او بین المللي کفار هیڅکله د یو حقیقي اسلامي نظام په رامنځته کېدو نه خوشحالیږي خو که چیرې د طالبانو دغه اسلامي مادې فعلاً کفار ورسره ومني نو وجه به یې دا وي چې د عامو خلکو احساسات خنثی او طالبان په

کامیابی تسلیم او ډیموکراسي ته ژمن کړي عیناً لکه څرنګه چې افغانستان ته د امریکایانو په راتګ ورته اساسي قانون د کفري اصولو پر بنیاد د اسلام په نوم جوړ کړل شو.

- د سپین طالب تور ستانکزي وویل چې اوسنی اساسي قانون ځکه د منلو وړ نده چې د اشغال د سیوري لاندې جوړ کړل شوی، نوموړي دا ونه ویل چې اوسنی اساسي قانون ځکه د منلو وړ نده چې مونږ مسلمانان یو او قرآن زمونږه اساسي قانون ده، دغو اسلام نماء سیکولرانو دا ونه ویل چې مونږ خپل قرآن، خپل قانون او خپل شریعت لرو نو ورسره موازي په غربي اصولو برابر بل کتاب، بل قانون او بل شریعت کفر او بغیر ما انزل الله ده او مسلمانانو ته هیڅکله د منلو وړ نشي کیدای.
- ستانکزي دا ونه ویل چې مونږ به اساسي قانون ددې لپاره بدل کړو چې د اعلای کلمة الله، د شریعت د تطبیق، د الله د رضا سبب او شرعي حدود پکې نافذ شي بلکې دا یې وویل چې انساني کرامات، ملي ارزښتونو او بشري حقوقو ته ژمن وي، هو د اسلام د مبارک دین د اصولو خبره یې یاده کړه چې دا خبرې له پورته سیکولر الفاظو سره مل په ۲۰۰۲م کال کې هم مرتد حامد کرزي د شیطانت د تطبیق لپاره زمزمه کولې چې د ملت د ګمراهی سبب وګرځیدلې او معلومه شوله چې اسلام ته منسوب دستارونه او دعوې یوازې او یوازې د

امریکایانو یو مکر وو چې په مټ یې دلته ډیموکراسي حاکمه او خلک د بې دیني په لوري وکوچول.

نو په ډاډ ویلی شو چې د سیکولر وطنونو اساسي قوانین د کفر کتابونه دي چې په مټ یې خلک گمراه او ډیموکراټیک الحاد ته ژمن کیدلی شي او د ا سلام نوم چې ور سره یادیږي دا په اصل حقیقت کې فریب او مکر ده چې یوازې خلک غولوي.

له بل پلوه د زندان په نوم د آی ایس آی په زیرخانو کې روزل شــوي برادر وویل چې زمونږ له تسـلیمي وروسـته به نظام اسـلامي وي خو دوی سره لدې د اسـلامي نظام دعوه کوي چې ښـځو ته به د سـیکولر اصـولو مطابق په اداراتو کې د کار کولو اجازې ورکړي، مکتبونو او پوهنتونو ته به هم ځي او معلومه ده چې ښـځینه نظامیانې به هم پخپلو دندو پاتې وي او ددوی ښـځینه سـپورتي ټیمونه به هم په ځای ولاړ وي ځکه پدې اړه ملا برادر او ستانکزي هیڅ کوم قید او شرط ونه لگاوه او بې له قید او شرطه یې ښځو ته هم آزادي ورکړه، نو د طالبانو له تسلیمي وروسته که پدې اصولو ولاړ نظام اسـلامي کیدلی شـي نو آخر ولې طالبانو اتلس کاله جگړه وکړه او ولې د غریبو، فقیرو او کونډو زامنو خپل سرونه پکې وخوړل؟

کله چې امریکه دلته راغله نو په همدا سې اصولو بناء یو نظام یې دلته قائم کړ لکه نن یې چې طالبان په صـفتونو نه مړیږي، حتی هغه مهال د ښـځو فحاشـي او سـیکولر

آزادیو هم دومره زور نه وو نیولی او د همدې سـیاف خیلو په فتوا چې د ملا برادر په خوله محترم جهادي شخصیتونه دي د اسلامي نظام حکم پرې وکړ، نو آخر ولې د همداسې یوه نظام په ضد په کابل کې په ځانمرګو خپلې میندې بورې شوې؟

افسوس افسوس!

کله چې فاسقان، خائنان او پردي پرست په یوه قوم حاکم شي نو بیا د هغه قوم داسې حال شـي لکه نن چې د امارت طالبان ګورئ، هم یې دین لاړ او هم دنیا، طالب کشـرانو ته خو اوس یوازې باتې او لویې لویې خبرې وراورول کیږي ددې لپاره چې حساسیتونه یې خنثی او د سولې په نوم د تسلیمي په مقابل کې یې د تضاد جذبې مړې شي خو زما دا خبره په یاد ولرئ چې تاسو ته به هیڅکله واک درنکړل شي مګر دا چې په پوره توګه ډیموکراټیکو ا صولو ته سرونه ټیټ کړئ، په پوره توګه خپل دین ته شـا کړئ او په پوره توګه د کفارو دین او قوانین په ځانونو عملي کړئ او په الله قسـم چې همدا خبره رښـتیا ده ځکه همدا قول د الله سـبحانه وتعالی ده چې کفار به هیڅکله له تاسو راضـي نشـي او هیڅکله به مسـلمانان په سـپین لیسـت کې داخل نکړي مګر دا چې مسلمانان ددوی د دین، قانون او تګلارو پوره متابعت وکړي.

طالبانو ته به هغه وخت پوره واک ورکړل شـي چې کله د اسـلام د غازیانو په ضـد له امریکایي ډبډبي الوتکو راکوز او په پوره توګه د غرب د پروژې یا همغې ډیموکراسـي

تطبيقوونکي او پهره داران  شي او ممکن زما پدې خبره به اوس د طالب په طرفدارانو زلزلې راشي خو همدا خبره کلکه په غوږ کې وساتئ او يو وخت يې حتماً در ياده کړئ.

## طالبان، د ښځو سیکولر حقوق او د اسلامي نظام دعوه

لکه څرنګه چې مخکې وویل شـــول د طالبانو قیادت په ځلونو ځلونو غرب ته اطمنان ورکړ چې مونږ به د ښځو حقوقو ته ژمن پاتې شو او دا چې د ډیموکراټیک الحاد د ملا تیر د ښځو په وسیله د ملتونو ګمراهي ده نو ځکه هم غربي کفار وخت پر وخت ددوی مشران په رسنیو کې په همدې الفاظو غړوي تر څو ددوی د صف حسا سیتونه لدې موضـوع سـره ختم او باالآخره کله چې دوی ځانونه تسـلیم کړي نو د ملحد نظام ټول اصــول به په همغه طرح پاتې شــوي وي د کومې طرحې په تطبیق پســې چې اتلس کاله مخکې همدا غربیان د افغانستان په لوري خوځیدلي وو.

که چیرې تا سو پخپلو ګرېوانونو کې سرونه کښته او فکر وکړئ چې امریکایان ولې له طالبانو د ښځو حقوق غواړي نو ډېر ژر به پوه شئ چې دغه ا صل د الحاد، دهریت او ډیموکراســي له ټولو لوی اصــل ده ځکه په ســیکولریزم او ډیموکراســي کې انســانان انســانان دي، هیڅوک نشــي کولی چې د جنســیت، دین، ایمان، عقیدې او یا تقوا په ا ساس دغه ډله په اعلی او ادنا وویشي، معا صر کفار د خپلو بې دینو او دهري ا صولو په رڼا کې ښځه له نر سره په ټولو حقوقو کې مساوي بولي نو ځکه هم د وطني امارت

لنډغر ستانکزی تل د همدې اصولو په منلو شخوند وهي تر څو د غرب پليده پروژه يا همغه ډيموکراسي د اسلام او دين په نوم په خلکو کې راشنه کړي.

په ياد ولرئ چې د ښځو د کومو حقوقو ټينګار چې غرب په طالبانو کوي دا همغه سيکولر او کفري حقوق دي چې ښځه له نر سره يکې مساوي بلل کيږي ځکه د طالبانو عباس ستانکزي له بي بي سي سره په يوه مرکه کې وويل چې ښځې به کولی شي چې مکتب او پوهتنون ته لاړې شي او کار وکړي بې لدې چې پدې اړه د کوم قيد او شرط يادونه وکړي نو آيا تاسو داسې فکر کولی شئ چې امريکې به ستاسو په قيادت د اسلام په چوکاټ کې د ښځو حقوق منلي وي ؟

هيڅکله نه! ځکه کفار د اسلامي اصولو په ټينګار پسې ندي راوتلي بلکې دوی د خپل ډيموکراټيک او لادينيت د اصولو په پياده کولو پسې راوتلي، باالمقابل الله سبحانه وتعالی د ښځې او نر د توپير په اړه پخپل مبارک کلام کې فرمايلي چې:

الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ بِمَا فَضَّلَ اللَّهُ بَعْضَهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ وَبِمَا أَنفَقُوا مِنْ أَمْوَالِهِمْ ۚ فَالصَّالِحَاتُ قَانِتَاتٌ حَافِظَاتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللَّهُ ۚ(النساء : ٣٤)

ژباړه: نارينه پر ښځو مسلط دي ځکه الله سبحانه وتعالی دوی [نارينه و ته] په ځينو نورو [ښځينه و] لوړتيا وربښلې ده لدې کبله چې نارينه خپل مالونه لګوي نو کومې

ښځې چې صالحې دي هغوی د فرمان منني خوی لري او د نارینه ؤ په غیاب کې د الله عزوجل د ساتنې او څارنې لاندې د هغوی د حقوقو ساتنه کوي.

پدې مبارک آیت کې په واضحه ویل شوي چې نران په ښځو مسلط دي او پرته له شکه چې مسلط او اداره کوونکي په نورو نشي نصبیدای مګر دا چې یو له بله د تقوا، جنسیت او نورو اړخونو له امله فرق ولري، له بل لوري د الله سبحانه وتعالی پدې مبارک آیت کې د مالونو د مصرف صفت نرانو ته ورکړل شوی او دا صفت نر ته نشي ورکول کیدای مګر دا چې دوی پخپله د مالونو ګټونکي نه وي خو د امارت ګمراه قیادت د سیکولر اصولو پر بناء او د قرآن عظیم الشأن له هدایاتو مخالف ښځو ته هم د کفارو په تقلید د کار کولو او پیسو ګټلو له فحاشي ډک حقونه په ملکي، نظامي او سپورتي ادارو کې ورکوي او دا به بیا ډیره سپکه او رذیله خبره وي که یو څوک دداسې خویونو خاوندان امام ابوحنیفه رحمه الله ته منسوب کړي او د هغه د لارې د لارویانو نومونه ورته یاد کړي.

ښځو ته کفري او سیکولر حقوق ورکول هغه اصول دي چې په ۲۰۰۲م کال کې د امریکې له راتګ سره سم په افغانستان کې همداسې یو نظام قائم شو او د ملا محمد عمر د قیادت لاندې حنفي علماء کرامو یې په اړه د کفر فتوا صادره او قتال في سبیل الله یې ورسره واجب وباله، خو که نن د آی ایس آی د امارت په قول په همغو اصولو د

افغانستان نظام اسلامي کيدی شي نو آخر ولې له اتلسو کالونو راهيسې د روس له جګړو پاتې کونډو او يتيمانو بيا هم خپل سرونه پدې لاره کې قربان کړل؟ که چيرې د طالبانو له راتګ سره پدې اصولو د افغانستان نظام اسلامي کيدای شي نو بيا خو د همداسې يوه نظام د اسلاميت فتوا سياف، رباني او... هم صادره کړې وه نو آخر د ملا محمد عمر د قيادت لاندې د استاد ياسر رحمه الله د علماؤ او د نني مرتد امارت د سوء علماؤ تر منځ کوم بدلون راغی چې هغه مهال همدا اصول کفري او نن اسلامي شول؟

له بل لوري استاد ياسر د خپل يوه بيان په ترڅ کې د وطن د آبادي په اړه وويل چې: [داسې آبادي نه غواړو چې بلډينګونه مو جوړ او د ښځو پرتګونه مو پرې وويستل شي]، خو نن د امريکايانو په پيسو د طالبانو د کوڅو د پخيدو، ورسره د وطن نورې آبادۍ د ښځو له سيکولر حقوقو سره مل چې د طالبانو نوي او سيکولر قيادت هم د منلو اقرار پرې وکړ ډير وځورولو چې ای کاش که همغه اتلان يو ځل بيا راغږيدلي شوای او پدې ذليل قوم يې خپلې مرغلرې اوريدلې وای.

## د طالبانو وطني فتح او د وطنیت د آزادیو د شعار حقیقت

د وطنیت په چوکاټ کې د آزادي او استقلال شعار د ډیموکراسي دوهم نوم ده، دا چې نن سبا په سیکولر وطنونو کې د ډیموکراسي د تطبیق ورځې د استقلال او د وطن د آزادي په نوم په افغانستان او یا نورو سیکولر ملکونو کې لمانځل کیږي په حقیقت کې دغه ورځې له دین او الله څخه د آزادي او د بې دینانو د غلامي د منلو ورځې دي چې یوازې نوم یې په دجالي فریبونو ککړ شوی خو په حقیقت کې همدا د ملحدینو له ټولو لوی شیطانت ده چې په ټولو هغو خاورو کې د آزادي په نوم شعارونه پورته کړي په کومه خاوره چې د سیکولریزم اصول او ریښې ورټومبل شوي او ډیموکراټیک نظامونه پکې پلي شوي وي او همدا علت ده چې له روسانو څخه د افغانستان د آزادي ورځ دومره په جوش نه لمانځل کیږي لکه د امان الله غدار د آزادي په نوم ورځ چې لمانځل کیږي ځکه په افغانستان کې د روسانو ډیموکراسي له منځه لاړه او مخکې له روسانو د خائن امان الله په لاس د ډیموکراسي نهالونه دلته تیار خښ کړل شوي و، له ښځو د لومړي ځل لپاره د همدې مرتد پرمهال په افغانستان کې پرتګونه وویستل شول او د لومړي ځل لپاره د ښځو سیکولر تعلیم، د

ښـــځو نیم بربنډ کالي، وطنیت او په ټوله ډیموکراســـي دلته رائج شـــوه او دا چې بیا وروسته د نورو لنډغرو له لوري همدغه مفسدین وځپل شول هغه بېل بحث ده.

کومه آزادي چې نن په  سیکولر وطنونو کې لمانځل کیږي همغه آزادي په امریکا کې هم په همغه فکر او عقیدې لمانځل کیږي لکه څرنګه چې اســلام ته په منســوبو جمهوریتونو کې لمانځل کیږي، خو آیا پدې مو فکر کړی چې امریکې له چا آزادي حاصـــله کړه چې بیا یې ورځ هم لمانځي او حتی د Statue of liberty په نوم یې مجسمه هم د آزادي او ډیموکراسي د نښان په شکل جوړه کړې؟

حقیقت داده چې امریکایانو له خپل دین څخه آزادي ترلاســـه او له تحریف شـــوي عیسویت څخه د الحاد او دهریت په لوري وکوچېدل، امریکې چې کله د ډیموکرا سي په چوکاټ کې د حلالو او حرامو او د  شریعت او قوانینو پرې له عیسوي پاپانو خپل کړ او د اکثریت رأیو ته یې وسپاره نو همغه ورځ ددوی د آزادي او استقلال په نوم ونومول شـــوه عیناً لکه په کومه ورځ چې دلته په افغانســـتان کې چې ملحد امان الله د ډیموکراټیک الحاد په چوکۍ کښینول او د بې دینانو خوبونه یې عملي کړل او عیناً لکه د ننیو طالبانو قیادت چې له ا سلامي  شریعت او قانون څخه په تېښته د ډیموکراټیکو او ســـیکولر اصـــولو په منلو ځانونه فاتحین بولي، عیناً لکه څرنګه چې د ډیموکراټیک الحاد د اول نســل په څېر د ښــځو ســیکولر حقوقو ته له قســمونو یادولو ســره ځانونه

مستقل، حر او آزاد بولي څکه دوی په حقیقت کې له اسلام، له اسلامي لاربښوونو، له اسـلامي اصـولو او له اسـلامي حدودو چې هغه له غل څخه د لاس پرې کول، زاني رجم کول او نور حدود دي آزادي حاصـله او ډیموکراسـي ته خپل صـف ورتسـلیموي، دوی د ملا عمر د فدایانو غوښــې په ډیموکراســي ورځارول غواړي او په بشــپړه توګه ډیموکراټیک او ملحد حکومت ته د ا سلام او حنفیت په نوم جوازونه ورکوي په همدې شــکل او په همدې فکر او عقیدې امریکایانو هم خپله آزادي له عیســوي دین څخه حاصله کړه.

په حقیقت کې همدا آزادیانې او ســیکولراســتقلالونه چې نن یې طالبان او نور افغاني ســیکولران او ملحدین هم د آزادي د ورځې په دود لمانځي او یا یوازې د امریکې په خارجیدو یې یو ځل بیا یې نوې کوي دا د امریکې د همغې آزادي یوه برخه ده چې غربیانو له عیسـویت یعنې دین څخه په تیښـته او د بې دینه ډیموکراټیک حکومت په رامنځته کولو حاصـله او د الحاد په چوکاټ کې یې ځانونه له هر بل قانون او شـریعت څخه آزاد او مستقل کړل، عیناً لکه څرنګه به چې د طالبانو له تسلیمي ورو سته دلته ډیموکراټیک نظام په پښــو ولاړ وي، له قرآن ســره به موازي د شــریعت او قانون بل کتاب د اساسي قانون په نوم شتون لري، انتخابات به ترسره کیږي او ښځو ته به له نرانو سـره برابر او مسـاویانه حقوق یعنې په اداراتو کې د کار کولو اجازې ورکول کیږي چې ددغو ټولو خبرو شـرعي حیثیت حتی په حنفي فقه کې هم ځیرل شـوی چې دغه

سـيکولر اعمال له دين او حنفيت سـره هيڅ ډول اړيکې نلري او که چېرې بيا هم ځوک ضد کوي او د غربي همجنسبازانو دغه تګلارې په اسلام او حنفيت پورې تړي نو قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ!!

## طالبان، له کفارو سره دوستي او د هغوی مرستې

له کفارو سره د دښمني په ځای دوستي کول او بیا مرستې ځنې ترلاسه کول که کوم څوک عقلمندي بولي نو هغوی په حقیقت کې د الله عزوجل د کتاب تکذیب کوي ځکه الله ســبحانه وتعالی پخپل کتاب کې مؤمنانو ته خبرداری ورکړی چې کفار هیڅکله مسلمانانو ته ښې ارادې نشي درلودلی، هیڅکله د مسلمانانو د راحت آرمان نشي درلودلی او هیڅکله کفار له مسلمانانو راضي کیدلی نشي مګر دا چې مسلمان خپل دین ورته پریږدي او ددوی د دین، قانون او تګلارو پیروي وکړي خو د طالبانو قیادت ورســره کشــران یې په ډیر فخر او زور له کفري هیوادونو ســره جوړښــتونو او دوستیانو ته اتهونه کوي او دې خبرې ته یې فکر هم نشه چې مونږ خو د اسلام دعوې لرو نو په اسلام کې ددغو اعمالو حیثیت څه ده؟

نن په ټول افغانستان کې د امریکې په پیسو د هغوی مؤسسې د شیطاني پلانونو د تطبیق هوډ لري، همدغه مؤســســې د دجالي نعمتونو توزیع کوونکي دي او ورســره شــرموونکې خبره دا چې د امریکې د سره صلیب په دواو د طالبانو زخمونه هم مداوا کیږي نو آیا تاسو پوهیږئ چې کفار ولې او په کوم هدف دغه کړنې تر سره کوي او الله پدې اړه مؤمنانو ته څه فرمایلي؟

پدې اړه ستاسو پام د الله سبحانه وتعالی له کلام څخه لاندې آیاتونو ته را اړوم او وګورئ چې د مسلمانانو په نسبت د کفارو د کینې او سختې دښمنۍ په اړه الله عزوجل فرمایلي چې:

وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ۗ قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ هُوَ الْهُدَىٰ ۗ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُم بَعْدَ الَّذِي جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللَّهِ مِن وَلِيٍّ وَلَا نَصِيرٍ (١٢٠)

ژباړه: او هیڅکله به یهود او نصارا له تاسو څخه راضي نشی [خوشحاله] [یعنې هیڅکله به تا سو په سپین لیست کې شامل نکړي] مګر دا چې تا سو ددوی د دین [قانون او تګلارې] پیروي وکړئ، ووایه: همغه د الله عزوجل هدایت یوازینې هدایت دی، که چیرې د هغوی له غوښتنو او آرمانونو څخه پیروي وکړئ له هغې ورو سته چې ته پوه کړل شوې هیڅ سرپرست او ملګرې به بې له الله عزوجل څخه ستا لپاره نه وي.

او همدارنګه فرمایي:

وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يَرُدُّونَكُم مِّن بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِّنْ عِندِ أَنفُسِهِم مِّن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ ۖ (١٠٩)

ژباړه: له اهل کتابو څخه ډېر خلک د هغه حسد له وجې چې ددوی په وجود کې ده آرزو لري چې تاسو له ایمان راوړلو وروسته د کفر حالت ته وروګرځئ وروسته له هغه چې حق هم هغوی ته روښانه شوی.

او فرمایي:

مَّا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَلَا الْمُشْرِكِينَ أَن يُنَزَّلَ عَلَيْكُم مِّنْ خَيْرٍ مِّن رَّبِّكُمْ ۗ وَاللَّهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ (١٠٥)

ژباړه: د اهل کتابو کافران او مشرکان دا نه خوښوي چې ستاسو د رب له لوري خیر او برکت په تاسو نازل شي، پداسې حال کې چې الله عزوجل چې هر چاته وغواړي رحمت ورته غوره کوي او الله عزوجل د ډېر لوی فضل درلودونکی ده.

او فرمایي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً مِّن دُونِكُمْ لَا يَأْلُونَكُمْ خَبَالًا وَدُّوا مَا عَنِتُّمْ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَاءُ مِنْ أَفْوَاهِهِمْ وَمَا تُخْفِي صُدُورُهُمْ أَكْبَرُ ۚ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ ۖ إِن كُنتُمْ تَعْقِلُونَ (آل عمران : ١١٨)

ژباړه: ای هغو خلکو چې ایمان مو راوړی! پرته له خپلو ځانو له [کفارو] سره خپل رازونه مه شریکوئ [ځکه] هغوی ستاسو د ورک کولو له هیڅ فرصت څخه ګټه اخیستل له لاسه نه ورکوي او تاسو ته چې په هر څه زیان اوړي د هغوی خوښیږي، د هغوی د زړه دښمني ددوی له خولې راوځي او څه چې هغوی پخپلو سینو کې پټ

ساتلي هغه لدې څخه هم زيات دي، مونږ تا سو ته رو ښانه لار ښوونې کړي که تا سو عقل ولرئ.

همدارنګه الله سبحانه وتعالى فرمايي چې:

هَا أَنتُمْ أُولَاءِ تُحِبُّونَهُمْ وَلَا يُحِبُّونَكُمْ وَتُؤْمِنُونَ بِالْكِتَابِ كُلِّهِ وَإِذَا لَقُوكُمْ قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ ۚ قُلْ مُوتُوا بِغَيْظِكُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ (آل عمران : ١١٩)

ژباړه: [ښه؟] تاسو له هغوى سره مينه کوئ؟ پداسې حال کې چې هغوى له تاسو سره هېڅ مينه نلري سره لدې چې تاسو ټول آسماني کتابونه منئ، کله چې هغوی تاسو سره يو ځای کېږي نو وايي چې مونږ هم [ستاسو پيغمبر او ستاسو کتاب] منلی [يعنې مونږ ستاسو دوستان يو او ستاسو په ګټه کار کوو] خو کله چې درڅخه بيليږي نو بيا ستاسو پر خلاف له ډېر قهر او غضب څخه خپلې ګوتې چيچي، هغوی ته ووايه د خپلې غوسې په تاو کې مړه شئ، الله سبحانه وتعالى آن د زړونو په پټو رازونو خبردار ده.

او د الله عزوجل ګڼ شمېر نور آياتو چې له کفارو سره د موالاتو د نهی او د هغوی د سختې د ښمنی په اړه يې مونږ ته لار ښوونې کړي خو نن د طالبانو قيادت په حماقت سره د ا سلام دعوې سره لدې کوي چې له رو سانو، چينايانو او مشرکو روافضو سره عميقه دو ستي پالي، وطن د امريکايي مؤ سسو په پيسو آباد غواړي او خندوونکې دا

چې عباس ســتانکزي د خپلې یوې مرکې په ترڅ کې د خپلو باڼو غرور هم تر شــا پریښــود او دا یې په ســپین ســترګي وویل چې د امریکې له تګ څخه وروســته دوی کولی شــي چې خپل انجنیران او ډاکټران دلته راولیږي او زمونږ نســل راته وروزي او وطن راته آباد کړي؟!!! او علت یې دا وښــوده چې دلته نړیوال د ســیمه ایز رقابت له مخې هر یو غواړي چې سرمایه ګذاري وکړي! څومره احمق دلیل!!؟؟؟ آیا افغانستان چې د لکونو شــهیدانو کور ده بالآخره به د نړیوالو ملحدینو د رقابت انډوخر ځای او د شیطاني پلانونو د تطبیق میدان وي؟ آیا ددوی دغه پوچ دلیل کولی شي چې د قرآن پورته آیاتونه منسوخ کړي او آیا فکر کوئ چې کفار مسلمانانو ته ښې ارادې ودرلودلی شي؟ لعنت الله علی الکاذبین.

دا چې د امارت خائن قیادت خپل ځان حنفي مذهب ته منسـوبوي نو د امام ابوحنیفه رحمه الله شــخصــیت لداســې ذلیلو تګلارو څخه ډیر اوچت او پاک وو چې د الله ســبحانه وتعالی پورته مبارک آیاتونه چې د مســلمانانو په نســبت د کفارو د دښــمني او کینې د زیاتوالي په اړه یې مونږ ته بیان کړي مخ ترې واړوي او یا دې پخپله خوښــه تأویلونه پکې جوړ او معنی یې پخپله ګټه ورته تحریف کړي.

له بل لوري د همدې نړیوالو کفارو هر خائن او هر جاســوس چې د مجاهد په نوم د افغانســتان په ډیموکراټیک او ملحد حکومت کې یو ځای شــوی خائن امارت په ځلونو

ځلونو د محترمو جهادي شـــخصـــیتونو نســـبتونه ورته وکړل او دغه ګمراهان چې د ا سلامي خلافت مؤمنو مجاهدینو ته د تکفیریانو او خوارجو نسبتونه کوي تر ټولو لوی دلیل یې همدا وي چې مونږ ولې د جهاد په نوم د ډیموکراټیکو نظامونو دغه خائنان او جاســوســان تکفیروو؟ پداســې حال کې چې همدې مرتدینو په ۲۰۰۱م کال کې له امریکې سره لاس یو کړ او د ملا محمد عمر او اسامه بن لادن رحمهم الله مجاهدین یې له خپلو کورونو څخه و شړل او لالهانده یې کړل، الله سبحانه وتعالی پدا سې حال کې مسلمانانو ته فرمایلي چې:

إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُم مِّن دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوا عَلَىٰ إِخْرَاجِكُمْ أَن تَوَلَّوْهُمْ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُمْ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الظَّالِمُونَ (الممتحنة : ۹)

ژباړه: الله سبحانه وتعالی تاسو یوازې د هغه چا له دوستي څخه منع کوي چې د دین [په امر کې] له تاسو سره جنګیدلي او تاسو یې له خپلو کورونو څخه ویستلي یاست او [یا له کورونو څخه] ستاسو په ویستلو کې یې [له کفارو سره] مرسته کړې وي، او هر هغه څوک چې له دوی سره د دوستي (رابطې) ټینګې کړي نو هغوی ظالمان دي.

خو دا چې نن ا سلامي دولت له همدې خائنانو چې د ملا محمد عمر مجاهدین یې د امریکایانو د B52 ډوله الوتکو په ســیوري کې له خپلو کورونو او کلو وشــړل بیزاري وښــودله او تکفیر یې کړل نو د طالبانو دوهم نســل فوراً د ملا محمد عمر د همدې دښــمنانو د دفاع لپاره د تورو بیرغونو په معزز خلافت د خوارجو او تکفیر یانو ټاپې

ووهلې، مونږ چې د مشر حنفي ملا په دفاع کې د هغه دښمنان تکفير کړل نو د قصه خوانۍ او د آی ایس آی حنفیانو تر ټولو زیات ځان وشــرماوه او د حنفيت په نوم يې هغه کړنې برسيره شوې چې په الله قسم الله، رسول او مؤمنان ځنې بيزاره دي.

## طالبان او د شریعت تعطیل

د نبي علیه الســـلام د مبارکو احادیثو په بنیاد، منصـــوره طائفه به تر قیامته پدې نړۍ کې شـتون لري او د الله ســبحانه وتعالی په لاره کې به قتل او قتال کوي او دا کار نه کیږي مګر په یوه هدف چې هغه په ځمکه د الله عزوجل قانون، شـــریعت او د همغه ذات پادشاهي پلي کول وي نو معلومه ده چې دغه طائفه به د خپل واک لاندې سیمو کې شرعي او الهي حدود نافذوي او د الله عزوجل د حکم مطابق فیصلې او امرونه به کوي او پدې لاره کې به د هیچا له ترټنې نه ویریږي، منصورة طائفو ته په اشارې الله سبحانه وتعالی پخپل کلام کې فرمایلي چې:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَن يَرْتَدَّ مِنكُمْ عَن دِينِهِ فَسَـوْفَ يَأْتِي اللَّهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ يُجَاهِدُونَ فِي سَـبِيلِ اللَّهِ وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ ۚ ذَٰلِكَ فَضْلُ اللَّهِ يُؤْتِيهِ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ (المائده : ٥٤)

ژباړه: ای هغو خلکو چې ایمان مو راوړی! له تاســو څخه چې هر څوک له خپل دین څخه مرتد شـي [الله سـبحانه وتعالی ته کوم زیان نشـي رسـولی] بلکې الله سـبحانه وتعالی به بله دا سې ډله رامنځته کړي چې الله به له هغوی سره مینه لري او دوی به هم له الله ســـره مینه لري، د مؤمنانو په مقابل کې به نرم او د کفارو په مقابل کې به

شــدید وي، دوی به د الله ســبحانه وتعالی په لاره کې جهاد کوي او د هیچا له ترټنې څخه به ویره نلري او دا د الله ســبحانه وتعالی فضــل ده چې هر چاته یې وغواړي ورکوي یې، د الله عزوجل [فضل] وسیع او الله پوه ذات ده.

پدې مبارک آیت کې لاندې حقایقو ته اشارې شوي چې بیان یې ضروري ګڼم:

- د یوې ډلې د ارتداد په صـورت کې به الله سـبحانه وتعالی بله ډله رامنځته کوي او د الله ســبحانه وتعالی د کلام معجزه نن د اســلامي خلافت راټوکیدل په روښانه ښکاره کوي، دا چې نبي علیه السلام د منصورة طائفې د تسلسل زیری اسـلامي امت ته تر قیامته ورکړی نو ورسـره سـم لدې آیت څخه هم معلومولی شــو چې منصــورة طائفه ګمراه کیږي حتماً خو ورکه کیږي هیڅکله نه ځکه رحمان او رحیم ذات پدې مبارک آیت کې له محمدي امت ســره د بلې ډلې د رامنځ ته کولو و عده کړې او دا هم غه خبره ده چې ډیموکراټ یک ملحدین او ا سلام نماء سیکولران د دجالي ر سنیو په تقلید دغو ډلو ته د کفارو سازش او د امریکې د پروژې خطابونه کوي، نعوذباالله منها...
- پدې مبارک آیت کې الله سبحانه وتعالی خپل خوښ بندګان پدې صفت ستایلي چې الله به له دوی سره مینه کوي او دوی به له الله سره مینه کوي!

پرته له شکه، له الله سبحانه وتعالی سره واقعي مینه د هغه د پادشاهي، شریعت، حدودو او قوانینو پلي کول او نافذول دي چې لدې نعمت څخه د دوهم نســل ســیکولر او وطني طالبان په کلکه عاجز شــوي او له ډیرې مودې نه لیدل کیږي چې دوی دې په ټول افغانســتان کې شــرعي حد په یو غل، زاني، شــراب خور، جادوګر، قطاع طریق او یا لواطت کار جاري کړی وي بلکې ددوی تر ټولو لوی شــاهکار داده چې د غل مخ ورتور کړي، په خره یې کښــینوي او یا د معاصــرو جهالتونو په اساس د غل په غاړه کې د موټر ټیر ورځوړند کړي، د روژه خور په خوله کې څبلۍ او ربړ ورکړي او د مفسدانو او مجرمانو په نسبت نور داسې اعمال چې له اسلام سره هیڅ اړخ نه لګوي، نو پدې صورت کې به ددا سې رذیلو انسانانو دعوه چې له الله سره مینه درلودل دي کاملاً باطله وي او معلومه ده چې د بغیر ما انزل الله او د جاهلیت د دودونو په اساس له فیصلې کوونکو څخه الله سبحانه وتعالی بیزاري ښودلې او فرمایلي یې دي: أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ (المائده : ۵۰)

ژباړه: آیا هغوی له تا د جاهلیت په فیصلو حکم کول غواړي؟ او بې له الله عزوجل څخه څوک د هغه قوم لپاره ښــې فیصــلې کولی شــي چې [په الله او رســول] یقین درلودونکي وي؟

- پدې مبارک آيت کې د الله سبحانه وتعالی د خو ښو بندګانو بل صفت دا ښودل شـوی چې د مؤمنانو په مقابل کې به نرم وي او د کفارو په مقابل کې سـخت او متشدد.

د ســيکولر او ډيموکراټيکو خويونو د تقليد له امله ډېرو خلکو د دين علم ته شـا ګرځولې، د ا سلام عظيم سيا ست يا همغه تکفير ته سوء علماؤ په مرموزه توګه رخصت ورکړی، همدا علت ده چې طالبان حکومتي مرتدين خپل وروڼه بولي او هيڅکله يې د ډيموکراټيک الحاد او د بغير ما انزل الله د قوانينو په پلي کولو تکفير نکړل، معا صر کفر چې د زرګونو فريبونو او شيطانتونو په مټ پدې امت د تطبيق په حالت کې ده له اصــولو څخه يې خلک ناخبره او لدې کفر او شــرک سـره رب ته سـجدې هم کوي او دوی خپلې شـرکي سـجدې د خپل اسـلام د دليل لپاره تر ټولو لوی حجت بولي او نه پوهيږي چې اســلام څه ته وايي او کفر څه ته؟

نو پدې صورت کې د اسلامي خلافت د قرآن او حديثو په رڼا او با خبره اسلامي منهج کې چې هر څوک تکفير شــوي هغو مرتدينو حتماً له خپل ځان څخه د تکفير د رد دليل د خپلو شـرکي سـجدو کول نيولي او د جهالت په اوج کې لګيا دي له خپلو سجدو سره سره ډيموکراټيک الحاد هم تطبيقوي او الله او د هغه قوانين او شريعت يې تر شا پريښي بلکې اکثره يې قرآني احکام اساطير الأولين

ګڼي، لدې زمانې سـره یې کامل نه بولي او همدا تر ټولو لوی علت ده چې د جهل او بې خبرۍ له وجې دغه مرتدین په اسـاسـي او کفري قوانینو قسـمونه خوري، له دین څخ خارج او مرتد شـوي خو له افسوس سره مل چې د همدې مرتدو ګمراهانو په وژلو هم نن خلک اسـلامي خلافت ته له مسـلمانانو سـره د تشدد نوم ورکوي!

بلکې په ویاړ ویلی شو چې نن ا سلامي خلافت د همدې کفارو او مرتدینو په مقابل کې تر ټولو سـخت دریځ لري او د خپل هغه مؤمن رعیت تر ټولو زیات خیال سـاتي چې ډیموکراټیک کفر تکفیروي، الله عزوجل ته په ځمکه د هغه د قوانینو په پلي کولو د همغه رحمان او رحیم ذات په پادشـاهي اقرار کوي او ان شـاءالله ددوی د سوکالۍ تر ټولو زیات آرمانونه پخپلو سینو کې حمل کوي خو باالمقابل وګورئ چې د ګمراه امارت قیادت صله رحم او زړه سوی یوازې په ډیموکراټیکو عسکرو درلودلی او د الله سـبحانه وتعالی د کلام په خلاف د هغه چا په مقابل کې نرمي کوي چې له ملا محمد عمر سـره د دین په امر کې جنګیدلي بلکې د کفارو په حمایت راغلل او د مرحوم ملا مظلوم امارت یې ور ړنګ کړ، نو د دوهم نسل طالبان د ملا محمد عمر د همغو دښـمنانو چې د کفارو په دوسـتي یې قسـمونه یاد کړي په مقابل کې زمونږ تشـدد له مؤمنانو سـره تشـدد بولي نعوذباالله، خو مونږ د هیڅا له ترټنې نه ویریږو بلکې مونږ پخپل همدې تشدد الله سبحانه وتعالی ته د شکر سجدې کوو

کوم تشدد چې مونږ د قرآن او سنتو د سوچه عقیدې په اساس د مرتدینو په ضد خپل کړی.

- پدې مبارک آیت کې د منصــوره طائفې بله علامه داده چې دوی به د الله عزوجل په لاره کې جهاد کوي او پدې لاره کې به د هیچا له ترټنې هم نه ویریږي!

پرته له شکه چې بهترین جهاد قتال في سبیل الله ده چې په مټ یې الهي حدود او شــریعت په ځمکه نافذیږي او دا به د منصــوره طائفې په هر صــورت نه پرې کیدونکی صفت وي چې د الله عزوجل د حدودو په تطبیق کې د هیچا له ملامتیا او ترټنې نه ویریږي عیناً لکه څرنګه چې نن تاســو د اســلامي خلافت مجاهدین ګورئ چې له غله لاس پرې کوي، زاني رجم کوي، جادوګران، قطاع طریقان او مفســدین وژني، أمر باالمعروف او نهی عن المنکر کوي، د زیرې په پریښــودلو امر کوي، شــرابي او د زیرې خریوونکي ته دُرې ورکوي او لله الحمد په ټوله معنی یې سـره لدې الهي حدود جاري سـاتلي چې بعضـو منافقینو او مرتدینو ته دغه کار ډیر ناخوښــه هم بریښــي او همدا مجاهدین شــپه او ورځ د الهي حدودو په تطبیق ملامت ګڼي.

باالمقابل وګورئ چې د مرتد امارت مشران سره لدې چې د قتال في سبيل الله دعوې کوي خو بیا هم د خپل لاس لاندې سـیمو کې هیڅکله شـرعي حدود نه نافذوي، هیڅکله یې له غله څخه لاس پرې نکړ، هیڅکله یې زاني رجم نکړ او هیڅکله یې مفسـدینو او لواطت کارانو ته سـزاء ورنکړه بلکې ددوی د خپلو مشـرانو زیرې لنډې د مســکو له رنډیو ســره په خوزه خوله مرکې کوي او ددوی قومندانان په لوړه کچه په لواطت او نورو بې حیاؤ سـر دي او کله چې انتقاد پرې وکړې چې تاسـو ولې شـرعي حدود نه نافذوئ نو فوراً غبرګه کړي چې پدې کار بیا عوام له مونږه ناراضـه کیږي! نو تاسو خپله فیصله وکړئ چې آیا دوی د الله سبحانه وتعالی د شریعت په تطبیق کې د خلکو له ملامتیا ونه ویریدل؟! تاسـو خپله فیصـله وکړئ چې د امام ابو حنیفه رحمه الله شخصیت به دداسې رذیلو تګلارو درلودونکی یو شخصیت وو؟

په الله قسم چې د مرتد امارت د مشرانو ګمراهي او ارتداد په ډیره روښانه دغه امت ته ســترګکونه وهي او نن که څوک لږ هم له دین څخه خبرتیا ولري نو ددوی په ارتداد کې هیڅ شــک او شــبهه نلري او بې له شــکه چې دوی ســیکولر مرتدین دي او د حنفیت له نوم څخه یوازې سوء استفاده او په مټ یې د آی ایس آی په کتابچو د دین د تحریف کو ښ شونه او په ځای یې د ډیموکراټیک الحاد د تطبیق ه سمونه کوي چې پدې کار کفار څنې راضي او مؤمنان څنې ناراضه دي.

## طالبان او ددوی غیر شرعي مالي منابع

د ملا محمد عمر د امارت له پرځیدو او ددغه مرحوم له مرګ څخه وروسته د طالبانو امارت په مستقیمه توګه د آی ایس آی د اداري لاندې راغی چې ور سره ددغه صف په عقیدوي، فکري، سیاسي او اقتصادي اړخونو کې پراخ بدلونونه راغلل، د پاکستان د طاغوتي نظام په لمن کې پروت دغه کاروان د ملا محمد عمر له مرګ څخه وروسته له هیڅ ناکاره کړنې مخ ونه ګرځاوه، د پاکستان د طاغوتي حکومت تر پوښښ لاندې له راتلو وروسته ددغه صف د هر لنډغر او اوباش د بخت ستوری وځلیده او د آی ایس آی له لوري ددوی په صف کې موجود هر قاتل، قاچاقبر او لوپر ددوی مشر، والي، ولسوال او قومندان او تر ډیره بریده همدا نا اهله کسان ددوی د صف د ملا تیر وګرځیدل چې د خپل لوپر نظام چارې یې د همدې جاهلو په مټ په غیر شرعي طریقه رواني او د خپلو اقتصادي چارو د تنظیم لپاره یې هم تر ټولو ناوړه او حرامې لارې پیدا کړې چې عمده لارې به یې مونږ په لاندې ډول بیان کړو.

- د امارت په حاکمانو او قومندانانو کې د نا اهله کسانو له لارې د پوډرو، افیونو، چرسو او د بعضو نورو نشه یي توکو تجارت مخ پروړاندې وړل او له همدې لارې د خپلو مصارفو او ضرورتونو پوره کول، له دین څخه ناخبره، جاهلان او یا د

نفاق په مرضـــونو ککړو دغو حاکمانو نه یوازې دا چې د خپل مالي تمویل سـرچینه د مخدره توکو له لارې وکړه بلکې دوی عامو خلکو ته هم ددغه حرام بوټي د کښت حکم وکړ او ور وروسته یې د عشر یا زکات په نوم د مخدره توکو د پیسو د راټولولو چارې پیل کړې!

که ددوی طرفداران دلیل نیسـی چې زمونږ بې له همدې بله مالي سـرچینه نشـته او ورته مجبور یو نو بیا به دا لوی جهل نه وي چې هغه څه چې الله او د هغه رســـول صلی الله علیه و سلم منفور او حرام ګرځولی او دوی یې ځانو ته د خیر او برکت ذریعه بولي؟! رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی چې: «كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ، وَكُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ» [صحیح مسلم]

ژباړه: «ټول نشه راوړونکي شیان شراب دي او هر نشه راوړونکی شی حرام ده».

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي چې: «كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ» [بخاري، مسلم او احمد] ژباړه: «ټول نشه کوونکي څیزونه حرام دي».

نو نه پوهیږم چې طالبان څنګه هغه شـــیان ځانو ته د خیر او برکت ســـبب بولي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم حرام ګرځولي؟ آیا دا ډېره خطاء عقیده نده؟! لدې بده او بویه خبره بیا دا چې طالبان یې عشر او زکاتونه هم اخلي؟! نعوذبالله نعوذبالله.

که د طالبانو کشـران بیا وایي چې یوازې اسـتعمال یې حرام ده او مونږ یې تجارت کوو نو بیا چې د طالبانو په جواز او سـبب او ددغو مخدراتو په کرلو جامعه فاسـده شـوه، په لکونو ځوانان په نشو سر شول او اکثره ددوی د فحا شی او تباهی سبب وګرځیده نو ددې سبب څوک ده؟! الله سبحانه وتعالی فرمایلی چې:

إِنَّ ٱلَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِـيعَ ٱلْفَحِشَـةُ فِى ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ فِى ٱلدُّنْيَا وَٱلْءَاخِرَةِ ۚ وَٱللَّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ [سُورَةُ النُّور : 19]

ژباړه: په یقیني توګه، کوم کسان چې د مؤمنانو په ډله کښې د بد لمنۍ خپرول خوښ ګڼې، هغوی په دُنیا او اخرت کښـي د دردناك عذاب ور دي، الله عزوجل پوهیږي او تاسو نه پوهیږئ.

همدارنګه الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې: وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَنِ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۖ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ [سُورَةُ المَائدة : 2]

ژباړه: او کوم کارونه چې د ګناه او تیري وي، په هغو کې د هیچا ملاتړ مکوئ له الله څخه وویریږئ چې د الله عزوجل عذابونه ډېر سخت دي.

د ګمراه امارت بنیاد چې په حرامو خړوبیږي او تغذیه کیږي نو دوی به خود له کفارو سره صلحې او له مجاهدینو سره جګړې کوي!

د طالبانو په طرفدارانو غږ کوم چې ډیره کړه لیاره مو له ډیرو لویو فاسقانو سره انتخاب کړې او ددې په ځای چې ددوی په طرفداري الله عزوجل ته ځانونه نږدې کړئ تاسو ورځ تر بلې له الله ســبحانه وتعالی څخه ځانونه لیرې کوئ او د جهنم په لور ځانونه نږدې کوئ!

- له بل لوري د امارت په نوم د طالبانو قیادت د ســیکولریزم او لادینیت د افکارو پر لور تر ټولو زیاته بیړه لري، نه یوازې دا چې پدې مســیر کې یې د ډیموکراســي تر ټولو لوی ا صل یا همغه وطنیت ته سرونه ټیټ کړل بلکې د خپل لوپر نظام د چارو تنظیم یې هم د ډیموکراټیکو اصــولو پر بناء جوړ کړ چې لدې جملې په اقتصادي برخه کې په لویو لارو کې د ګیلم جمو په څیر ولاړ او له لویو موټرونو د مالیې یا حق العبور په نوم غیر شرعي پیسې شکوي، زمونږ د معلوماتو په اساس طالبان د خپل غیر ا سلامي فطرت په ا ساس د عامو خلکو د تیلو د هر ټانکر په ســر له پنځو زرو تر پنځلســو زرو افغانیو پورې پیســې اخلي، ددې کار لپاره یې منظم پاټکونه جوړ کړي او تاسو کولی شئ چې د طالبانو له لوري کوم موټر ته د ورکړل شــوې پارچې دغه ثبوت وګورئ چې څومره غیر شــرعي پیســې له عامو خلکو د غیر شرعي مالیې په نوم شکوي؟

د افغانستان اسلامي امارت
د اقتصادي او مالي چارو کمېسيون
د ګمرکاتو رياست دلويولاړو څانګه
د نقدي عوائدو رسيد
1479
نېټه 2018/9/15 مسلسل شمېره
د موټروان نوم ... د موټر نمبر 1376
د شرکت يا تاجر نوم ... د جنس نوعيت
مبلغ په عدد 5000 په حروفو
د مبلغ ورکونکي نوم ... اخيستونکي نوم
يادونه: دغه تعرفه د 2018/9/15 تر 2018/9/22 پورې د (7) ورځو لپاره اعتبار لري.

د افغانستان اسلامي امارت
د اقتصادي او مالي چارو کمېسيون
د ګمرکاتو رياست
جنوب ختيځ (04)
۱۴ هـ ق 11/9/18
پرلپسې شمېره
د مال د خاوند نوم
د جنس مقدار
جمله مبلغ په تورو
وصول ( ) بقايه ( )
د اخستونکي نوم
او تليګرام شمېره : 0093700753404 ايميل ادرس: gomrakaat.emarat@gmail.com

په عوامو مسلمانانو هيڅ قسم ماليه، ټکسونه او جزيې نشته خو طالبان له دوی څخه غير شـرعی پيســې د جزيې په شـکل اخلي او بيا خپل بنياد له همدې حرامو پيســو خړوبوي، ددغه بې خبره کاروان جنګېدونکي عنا صر فکر کوي چې مونږ د شريعت د نفاذ په لياره کې خپلې وينې بهوو پداســې حال کې چې دوی پخپلو وينو دداســې يوه جماعت حمايت کوي چې په کرار کرار د ډيموکراټيکو او ملحدو نظامونو عادتونه خپلوي او پدې توګه او په اصــل حقيقت کې دوی د طاغوت په لياره کې خپلې وينې بهوي!

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلی چې:

ژباړه: بې له شکه [د تجارت] د مال د لسمې حصې ټیکس په یهودو او نصاراو ده او دا پر مسلمانانو نشته! [سنن ابی داؤد ج ۸ ص ۲۶۷، سنن الترمذي، احمد، ابن ابی شیبه، السنن الکبری، البیهقی]

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي:

ژباړه: پر مسلمانانو ټیکس نشته، ټیکس یوازې پر ذمیانو ده. [شرح المعانی الآثار ج ۲ صــفحه ۲۱] [ذمیان هغه کفار دي چې د مســلمانانو پر ځمکو کې ژوند کوي او جزیه ورکوي]

نو د طالبانو بله غیر شــرعي مالي ســرچینه له عوامو مســلمانانو ســره د ذمیانو په څیر سلکوک کول او د غیر شرعي پیسو راټولول د سیکولر اصولو پر بنیاد دي چې په ظلم یې په لویو لارو کې له خلکو شکوي او بیا خپل فاسد بنیادونه پرې خړوبوي.

- له بل لوري افغانستان ته د امریکې را رواني پیسې د طالبانو لویه مالي سرچینه ده چې دغه پیســې د مختلفو شــیطاني مؤســســو د شــیطانتونو د تطبیق لپاره افغانســتان ته راوړل کیږي چې طالبان هم د پیســو په مقابل کې د کفارو د شــیطانتونو تطبیق ته لاره هواروي او د هرې پروژې چې اکثره پروژې ملیاردونه ملیاردونه ډالر بودیجه لري لس فیصده یې طالبانو ته ورکول کیږي.

د امریکایي مؤسسو دغه پیسې چې افغانستان ته د مؤمنانو د بې لاري، د ډیموکراټیکو اهدافو د پلي کولو او د خپلو خرابو مقـصدونو د لا ستـه راوړلو لپاره راوړل کيږي طالبان د خپلې ښیرازۍ او آبادۍ سبب بولي، مونږ د کفارو د مر ستو په اړه مخکې هم د الله عزوجل آیاتونه تاسو ته بیان کړل چې الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

وَدَّ كَثِيرٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يَرُدُّونَكُم مِّن بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِّنْ عِندِ أَنفُسِهِم مِّن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ ۖ (البقرة : ۱۰۹)

ژباړه: له اهل کتابو څخه ډیر [کفار] د خپلې کینې له وجې [چې ددوی په زړونو کې منډې وهي] ډیره آرزو لري چې تاســو له اســلام څخه وروســته د کفر حالت ته ور وګرځوي پداسې حال کې چې حق هم دوی ته روښانه ده.

همدرانګه الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ الْيَهُودُ وَلَا النَّصَارَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ۗ (البقرة : ۱۲۰)

ژباړه: یهود او نصارا به هیڅکله له تا سو را ضي نشی تر هغو چې تا سو ددوی د دین [ددوی د قانون، شریعت او تګلارې] پیروي ونکړئ.

نو دغو او ورته نورو مبارکو آیاتونو ته په کتو چې مخکې ذکر شـول طالبان په کوم دلیل د کفارو دغه پیســې د خپل ځان او مؤمن امت لپاره د خیر او برکت ســبب بولي؟ دوی په کوم دلیل ددوی له شیطاني پلانونو لس فیصده مرداري او مزدورې پیسې ځانو ته

حلالې بولي او دوي څرنګه ځانو ته پداسې حال کې د اسلام د جنګیالیو خطابونه کوي چې د غربي شیطاني پروژو په سر د پیسو په مقابل کې پهرې کوي؟
نو په ډاډ سره ویلی شو چې نن د طالبانو بله د حرامو او غیر شرعي پیسو مالي سرچینه همغه د کفارو په شیطاني پلانونو کې ددوی د ونډې اخیستلو پیسې دي چې د لس فیصده پیسو په بدل کې ددوی په مکارو پروژو چوپ پاتې کیږي بلکې د حفاظت او تطبیق لپاره یې پهرې هم پرې کوي.

- له بل لوري څه موده مخکې امریکایي شیطانانو ددوی له بل شرمیدلي راز څخه هم پرده پورته کړه چې مونږ به لدې ورو سته د طالبانو مصارف چې هغه د قطر د دفتر، ددوی د لنډغرو د خارجي سفرونو او په هوټلو کې کبابونه دي نه ورکوو!

خو پدې بې ضرورته خبره کې به د غربي شیطانانو کوم مکرونه نغښتي وي؟ آیا داسې نده چې په فکري ډول د طالب د کاروانونو له ځانه د متأثره کولو لپاره او ددوی په پوچو ککریو کې د ځان په نسبت د دوستي د احساساتو د راپارولو لپاره ویل کیږي ترڅو بله ورځ بیا دوی هم د خپلو مشرانو په څیر د امریکې د جزیرې د حفاظت قسمونه وکړي؟
کنه مصارف به ولې د طالب مشرانو ته نه ورکوي؟ د طالبانو قیادت د غرب په مزدوري لګیا ده خپل صف په ډیموکراسي ورننباسي، د غربي جزیرو د حفاظت احمق تضمینونه ورکوي او پخپل صف همدا توبې اوروي چې نورې خارجي مداخلې بندې،

نو د کوم علت له مخې به دغه مصارف نور نه ورکوي؟ آیا په یاد مو دي چې د افغان د مرتد حکومت په نظامیانو هم یو ځل امریکې تش په دروغو او یوازې د رســنیو په مخ تیل بند کړل؟ خو ولې یې بند کړي؟ آیا د افغان مرتد حکومت نظامیان ډیموکراسي او وطنیت نه تطبیقوي؟

خو د طالب کشــرانو ته د ســړي درد راشــي چې د غرب په پیســو ددوی دفترونه او هوټلونه تمویلیږي، د شـیطانو مؤســسـو په پیسـو یې بنیادونه تغذیه کیږي خو دوی په ساده‌ګي افتخارونه کوي چې نن زمونږ فلان مشر په فلان هوټل کې شپه تیره کړه او بیا ورسره د نعره تکبیر غږ هم پورته کړي چې کامیاب شولو او امریکه مو ماته کړه؟

مونږ چې هر څومره دغو ناخبرو ته نصیحتونه کوو چې ستاسو قیادت ستاسو په وینو ملنډې وهي خو بیا هم په خوب کې همغه د خوارجو بې اساسه خبره څنې اورو کومه خبره چې د غرب په مصارفو ددوی د قیادت له لوري ددوی په ککریو ورټومبل شوې.

پرته له شکه د مرتد امارت ټولې مالي، اداري، تشکیلاتي او رسنیزې چارې د همدې غربیانو له لوري اداره او تمویلیږي او نن همغو غربي ملحدینو د طالب جامې په تن او د اســلامي امت په لوري یې خپلې مردارې ســترګې خښــې کړي خو ددوی ناخبره کاروان اوس هم لګیا ده له همدې جهالتونو خپلې وینې او سرونه ځاروي.

نن چې هر څوک د طالب له صف سره یو ځای کیږي په حقیقت کې د نړیوال کفري او سیکولر ائتلاف سره یو ځای کیږي ځکه په ثبوت سره روښانه شوه چې نن طالب د هغه هدف په لور خپلې وینې بهوي په کوم هدف پســې چې د نړیوالو کفارو د ناټو

ځواکونه اتلس کاله وړاندې را روان شول، نن د طالبانو مشران د همغو خلکو په مالي امکاناتو مخ پر وړاندې روان دي د کومو خلکو په مالي امکاناتو چې اتلس کاله وړاندې له شمال څخه د مسعود لنډغر د ملا محمد عمر په لوري راوخوځیدل! د امارت د خائنو مشرانو له تورو څیرو به بإذن الله نور هم نقابونه پورته او حقیقت به یې روښانه شي خو افسوس د مرضي زړونو د خاوندانو په حال چې دوی به د تل په څیر له خپلو سترګو پټۍ لیرې نکړي او هیڅکله به سپین ته سپین او تور ته تور ونه وایي.
د ناخبرو دغه کاروان ته بیا هم دعوت ورکوو چې ځانونه هوښیار کړئ او لدې هم زیاتې علامې نورې ستاسو د هلاکت او تباهیو نښي راڅرګندېدلی بلکې که نورې هم راڅرګندې شي هغه مهال به ډیر ناوخته او ستاسو په پښو کې به د ذلت ځنځیرونه در تړل شوي وي.

## طالبان، د صوفیانو ګډیدا، خرافات او بدعتونه

طالبان د قرآن او حدیثو پیروان وژني، د ټوپک په زور یې د آی ایس آی حنفیت ته مجبوروي خو هیڅکله یې کومه ورځ د تصوف په هغو بیزوګانو یو کوچنی رد هم ونکړ چې د ډمانو په څیر ګډیږي او نعوذ باالله خپل ډمتوب، رقص، بغیدا او په یو او بل سپرېدل دین ته منسوبوي او دغه کار ته د الله عزوجل د عبادت نوم ورکوي، که خبره حنفیت ته د راګرځولو وي نو آیا تاسو فکر کوئ چې امام ابوحنیفه رحمه الله به دداسې ډمانو د روزلو یوه مدرسه درلوده چې په ډمتوب به یو څوک دده په نزد افضل او د قرآن او حدیثو لاارویان به د وهابیانو په نوم منفور وو؟ آیا فکر کوئ چې امام ابو حنیفه رحمه الله به هم د طالبانو په څیر هغه خلک تائیدول او پخپله شــاوخوا به یې راټولول چې ګډیدا، رقص او ډمتوب الله ســبحانه وتعالی ته د نږدې کیدو وســیله بولي؟ بلکې نه ګورئ چې د طالبانو د آی ایس آی حنفیت پخپله همدې تصــوف ته ژمن او کتابونه یې ترې ډک دي؟ که چیرې د امارت کشران دا خبره کوي چې زمونږ حنفیت لدا سې تصـوف څخه بیزاره ده نو ولې د امارت رســنیو یوه ورځ پدې ډمتوب رد ونکړ؟ ولې یې یوه ورځ و نه رټل؟ او ولې یې یوه ورځ د یوې څپېړې ګوزار پرې ونکړ چې د حنفیت رنګ مه بدوئ او دغه خرافات بند کړئ؟!

د طالبانو د حاکمیت لاندې سیمو کې نه یوازې دا چې د کفر پروګرامونه په بې غمۍ د تطبیق په حال کې دي بلکې دوی حتی نشـــي کولی چې عادي خرافات او بدعتونه هم له خپلې جامعې پورته او شـــریعت تطبیق کړي، د حنفیت له نوم څخه په بدې ا ستفادې او د یونان د فلا سفه ؤ د منطق په مټ لګیا دي هر څه ته تأویلونه او د دین په معنی کې تحریفو نه کوي، ددوی د واک لا ندې ســـیمو کې واده کول چې په اســـلامي شـــریعت ملبســـه ټولنه کې یو عادي امر ده تر ټولو درووند بار ګرځیدلی او څه موده مخکې یوه منا صر ورور راته وویل چې زمونږ په سیمه کې سره لدې چې طالبان حاکم دي په یوه واده له ل سو لکو تر پنځل سو لکو م صرف راځي او له همدې امله ډیر ځوانان د واده له کولو عاجز او ددغو ناخوالو له کبله ګڼ شـــمیر خلک د طالبانو په شمول په اخلاقي ف سادونو، زناء او لواطتونو سر دي نو تا سو خپله پخپلو ګریوانو کې ســـر کښـــته کړئ چې د طالبانو د آی ایس آی حنفیت ددغې ټولنې کوم درد دواء کړ؟ آیا په حنفیت کې به د یوه مؤمن د ژوند عادي امر په همدې ډول درووند وي؟ آیا امام ابوحنیفه رحمه الله به د همداســـې یوې جامعې د رامنځته کولو ترغیبونه خلکو ته کول؟

ورسره، د طالبانو په ټولو سیمو کې ددین په نوم له بدعاتو ډک رواجونه چې نه په قرآن ثابت دي، نه په احادیثو او نه د صـــحابه کرامو او ســـلفو صـــالحینو له اعمالو، دغه ناخوالې ښـــه په کلکه مخ پر وړاندې روانې دي لکه د مولود د ورځو لمانځل، بدعي

ختمونه، ا سقاطونه، شرکي زیارتونه، د تعویذ په نوم د جادوګري تجارتونه او دا سې نور خرافات، بدعات او شـــرکیات چې دوی جاهل تأویلونه او د تحلیل لپاره ډیر بې ځایه دلیلونه ورته بیانوي، ددغو مســـائلو فقهي حاشـــیو ته نه ځو چې د کتاب حجم به لوی کړي، امام ابوحنیفه رحمه الله خپله فرمایلي چې زما مذهب قرآن او حدیث ده، که چیرې زما خبره له قرآن او حدیثو ثابته وه نو ویې منئ او که نه وه ثابته نو په دیوال یې وولئ، خو د ننیو طالبانو خبرې د یوناني فیلســـوفانو په منطق اســـتواره دي او د خپلو مردارو ژبو جوهر یې د ډیموکراسي، سیکولر وطنیت، کفر او خرافاتو د تطبیق لپاره تیز او بیا د خپلو خیټو دلایل خلکو ته د حنفیت په نوم وراوروي او څه ښـــه فرمایلي الله ســـبحانه وتعالی ددوی په اړه چې: ثُمَّ يَقُولُونَ هَٰذَا مِنْ عِندِ اللَّهِ لِيَشْـــتَرُوا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا فَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا كَتَبَتْ أَيْدِيهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُم مِّمَّا يَكْسِبُونَ (البقرة: ٧٩)

## طالبان او شيعه ګان

پټه نده چې د شيعه مشركينو په تكفير ټولو اهل سنتو او ائمه اربعه ؤ اجماع کړې او پدې اړه مونږ وخت پر وخت له خپلو نشراتي منابعو خلک پوهولي چې د شيعه ايزم دين هيڅكله ا سلام ته كوم منسوب مذهب نده بلکې دا له ا سلام څخه بيل يو دين ده چې تګلاره يې په مختلفو ګمراهيو بناء ده، دغه مشركين چې ددوی سرچينه د عراق له كربلاء او د ايران له مجوسيانو سر اخلي صحابه كرام تكفيروي، أم المؤمنين بي بي عائشه رضي الله عنها ته د زناء كاري نسبتونه كوي نعوذبالله، قرآن ناكامل ګڼي، على رضی الله عنه سميع او بصير ګڼي او ګڼې شمير نور داسې خرافاتي او كفري عقيدې چې له امله يې دوی له اسلام څخه بيل شوي او له دغه كامل دين سره يې موازي يو بل دين د شيعه ايزم په نوم ايجاد کړی، ددوی د ګمراهيو ثبوتونه ممكن تا سو ته رو ښانه شوي وي خو راځئ چې د حنفي مذهب په شمول د نورو ټولو پخوانيو علماء كرامو او فقهاؤ نظر د شيعه مشركينو په اړه وګورو چې آيا هغوی هم د طالبي حنفيانو په څير شيعه مشركنيو ته د ورونو خطابونه كول او كه هغوی يې تكفيرول؟

- د امام ابوحنیفه رحمه الله مخکې به چې چا د شـیعیه ؤ په اړه خبره وکړه نو هغه به تل دا خبره کوله چی: هر څوک چې د هغوی په کفر کې شک کوي هغه هم د دوی په څیر کافر ده.

- اما ابو حنیفه رحمه الله همدارنګه فرمایلي چې: هر څوک چې د ابوبکر صـدیق رضـي الله عنه له خلافت څخه انکار وکړي هغه کافر ده او همدارنګه هر څوک چې د عمر فاروق رضـي الله عنه له خلافت څخه انکار وکړي. [إمتاع الأسـماع للمقريزي ج 9 ص 218.]

خو د طالبانو د آی ایس آي حنفیت د پورته عقایدو درلودونکو ته نن د تکفیر یانو او خوارجو نسـبتونه کوي او د شـیعه ګانو په دفاع کې ددوی د تکفیر د رد لپاره داسـې جاهل تأویلونه کوي چې په تیر امت کې هیڅکله کوم عالم نه وو کړي، که چیرې له شـیعه مشـرکینو د تکفیر د موانعو په مټ تکفیر رد کیدلی شـي نو آیا امام أبو حنیفه رحمه الله ته دا مسئله نه وه وا ضحه؟ آیا امام ابوحنیفه رحمه الله په دین ښه پوهیده او که د آی ایس آی او د طالبانو حنفیت؟

- امام شافعي رحمه الله به ویل: شیعه ګان له مسلمان څخه شفع نشي وړلای، هغه ویل چې ما په اهل هوی ؤ کې له رافضیانو زیات دروغجن بل څوک نه دي لیدلي.

- امام احمد بن حنبل وايي: د دوی د کفر په اړه ګڼ روایتونه شــته! هغه وايي: د ابا عبدالله څخه مې د هغو کسانو په اړه پوښتنه وکړه چې ابوبکر، عمر او عایشې رضــي الله عنهم ته ښـکنځل کوي نو هغه راته وویل: نو ددوی د اســلام په اړه ستا څه رأیه ده؟ [یعنې ددوی په کفر کې شک مکوه دا ښکاره کافر دي].
- امام مالک بن انس وايي: اهل هواء ټول کافر دي او په دوی کې تر ټولو بدتر روافض دي. [ترتیب المدارك وتقريب المسالك للقاضي عياض ج 2 ص 49]
- خلال وايي: ما ته عبدالملک بن عبدالحمید ویلي چې هغه دا خبره له أبو عبدالله احمد بن حنبیل اوریدلې وه چې هر څوک د روافضــو په څیر صــحابه کرامو ته ښــکنځل وکړي زه د هغوی په کفر ویریږم، [یعنې کافر او له اســلام څخه وتلي دي] هغه زیاتوي: عبدالله بن حنبل وايي: ما له خپل پلار څخه د هغه چا په اړه پوښتنه وکړه چې صحابه کرامو ته ښکنځل کوي نو هغه راته وویل چې: نو ته ددوی په کفر کې شک کوې؟ [السنة للخلال 2 / 557 ـ 558].
- ابن عبدالقوي وايي چې امام احمد به ویل څوک چې له صــحابه ؤ خپله بیزاري ښـکاره کړي او بي بي عایشــې رضــي الله عنها ته ښـکنځل وکړي او د هغه څه تهمت پرې ولګوي چې الله ســبحانه وتعالی يې برأت کړی نو دوی کافران دي او هغه به په دې اړه دا مبارک آیات وایه چې: يَعِظُكُمُ اللَّهُ أَن تَعُودُوا لِمِثْلِهِ أَبَدًا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ (النور: ١٧) ژباړه: الله سبحانه وتعالی تا سو ته نصیحت کوي

چې هيڅکله دا کار [په بې بې عائشــې رضــي الله عنها باندې تهمت لګول] تکرار نکړئ که چيرې ايمان لرئ.

- امام بخاري رحمه الله فرمايلي: ماته بې تفاوته ده چې د جهمي او رافضي پسې لمونځ وکړم يا يهودي او نصــرانې پســې [يعنې دوی ټول يو دي]. همدارنګه فرمايلي يې دي چې: پر دوی [شيعه ګانو] سلام مه اچوئ، د مريضانو پوښتنه يې مه کوئ، نکاح مه ور ســره کوئ، جنازې يې مه کوئ او ذبيحې يې مه خورئ.
- ابن حزم وايي: کله به چې زما له نصارا ؤ سره بحث او مناظره وه نو د رافضيانو کتابونه به يې زما د رد لپاره را مخې ته کړل، رافضي د نصارا د کلمې بديل ده او له همدې وجې روافضو ته مسلمانان نشو ويلای او رافضيان نوې ډله ده چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم له وفات څخه وروسته پنځه ويشت کاله وروسته را پيدا شوه.

ابن حزم زياتوي چې له همدې وجې د ټول اهل ا سلام په نزد دوی مشرک دي او دوی ســره زمونږ څه کار او اړيکه نشــته بلکه زمونږ کار او اړيکه له مســلمانانو ســره ده.

- ابو جامد غزالي وايي: د روافضــو په فهم او درک کې زيات نقصــان ده، دوی په ابتداء کې د ډېرو ا شتباهاتو مرتکب شول دوی په خپل ګمان له علي رضي الله عنه روايت نقل کوي چې هغه وايي: زه په غيب پوهيږم خو ځکه يې نه وايم چې الله به زما په وړاندې کم راشــي. نعوذباالله نعوذباالله، دوی د جعفر بن محمد څخه حکايت کوي وايي: چي علي رضــي الله عنه د اســماعيل ذبحې په اړه په ډېرو هغو اســرارو پوهيده چی الله نه پوهيده. نعوذباالله نعوذباالله. دا ټول کفري او شرکی عقايد چې د دوی پر جهل او ناپوهي ولاړ دي.
- قاضــي عياض وايي: د شــيعه ګانو دا عقيده ښــکاره کفر ده او د دوی په کفر دلالت کوي چې وايي امامان د انبياؤ لوړ او غوره دي، همداســې روافض هم د ا سماعليه ؤ او باطنيه ؤ په څير د قرآن د کمبود عقيده لري او څوک چې د قرآن له يو حرف څخه منکر شي يا يې د کمبود عقيده ولري هغوی کافران دي.
- ابن تيمه وايي: ټولو اهل علمو پردې اتفاق ده چې روافض يا شــيعه ګان د علم نقل، عقل، روايت او ا سنادو پر ا ساس تر ټولو فرقو زيات کذاب او دروغجن دي او دروغ ددوی د پخوا عادت و ځکه خو ټول ائمه اســلام ددوی د ډېرو دروغو په وجه له دوی نفرت لري، همدارنګه زياتوي: د دوی د کفر تر ټولو ستر دليل داده چې دا خبيثان وايي: علي معبود يا االه ده او يا هغه نبي و خو جبرائيل أمين د وحې راوړلو پر مهال غلط شوی و، لدې وجې ددوی په کفر کې هيڅ شک نشته

او هغه څوک چې ددوی په کفر کې شک کوي د هغوی په ایمان کې هم شک ده.

نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په شمول په پورته دلائلو کې د ټولو اهل سنتو رأیه د شیعه مشرکانو په اړه راوړل شوه چې ټولو تکفیر کړي او هغوی څنې بیزاره وو او له دوی څخه یوه یې هم ونه ویل چې دوی په جهل معذور دي او یا د تکفیر موانع باید ورته ولټول شي خو د معاصر حنفیت ستوري چې د آی ایس آي د مستقیم څار لاندې قرار لري خپلې عقیدې او تګلارې یې په شیطانانو پورې تړلي چې له دوی ا مام ابوحنیفه رحمه الله او ټول اهل سنت بیزاره دي.

د طالبانو امارت په ځلونو دوی ته د ورونو خطاب کړی او دغه شرکي دین یې اسلام ته یو منسوب مذهب بللی او اوس هم لګیا دي د ایران د مشرکو آخندانو ورپسې ددوی ډیموکراټیک نظام ته د اسلامي نظام خطابونه کوي او په بدل کې د همدوی په دفاع کې مونږه خوارج او تکفیریان بولي، دوی پداسې حال کې د شیعه مشرکینو په تکفیر ځوریږي چې ا مام ابوحنیفه رحمه الله یې هم تکفیر کړی خو طالبان دي چې دداسې عقیدو خاوندانو ته د تکفیریانو او خوارجو نسبتونه کوي، حسبنا الله ونعم الوکیل.

بلکې د طالبانو مشـران او ورسـره شـیعه وروڼه یې خوارج او تکفیریان دي او لدې هم ورپسې بدتره دا چې دوی د سیکولریزم او ډیموکراسي په نوي دین اخته او د بې دینیو په عاداتو روږدي شوي دي چې د امام ابوحنیفه او ورسره د ټولو اهل سنتو عقیده لدې ګمراهانو بیزاره ده او مونږ ددوی له فسادونو څخه الله عزوجل ته پناه وړو.

## طالبان او ډیموکراټان

مونږ دد غه کتاب په مخکینیو پاڼو او په خپلو نورو مقالو، رســـالو او کتابونو کې د ډیموکراســـي حیثیت د قرآن او ســـنتو په رڼا کې ذکر کړی او پکې معلومه شـوې چې ډیموکراسي معاصر نوی کفري دین ده چې د بې دیني په اصولو استوار ده او هر هغه څوک چې پدې نظامونو کې ځان کاندید کړي او یا رأیه ورکړي د الهي کلام د نصوصو په اساس خارج عن ملة الاسلام ده، وینه او مال یې حلال ده او ورسره جګړه کول پاک او مقدس جهاد في ســـبیل الله ده او هر څوک چې دوی ته د ورونو خطابونه وکړي نو د همدوي په څیر کافر او مرتد ده.

لله الحمد نن د همدې ډیموکراټانو او سـیکولرانو په ضـد د قتال في سـبیل الله په تر سره کولو کې د اسلامي خلافت مجاهدین تر تولو مخکښاو د ډیموکراسي د نابودولو او ددې فتنې د ختمولو په هوډ خپلې وینې بهوي او باذن الله چې همدا خبره به دیر ژر تحقق ومومي خو مهمه خبره دا چې د اســـلامي خلافت مجاهدین یې د الهي شـــریعت له وجې وژني نه د جاهل وطنیت او یا نه پداســـې حال کې چې د خپلو ورونو خطابونه هم ورته کوي او وژني یې هم.

خو ا مارت د خپل اول نســـل د فتواو په خلاف ډیموکراټیک کفر اســـلام ګڼي او تطبیقوونکي عسکر یې خپل وروڼه او ولې به یې وروڼه نه وي چې دوی پخپله د خپلې ډیموکرا سي اعلان وکړ، ا سا سي قانون جوړول، د ښځو له نرانو سره مساوي او برابر حقوق او ښـــځو ته همغه آزادي ورکول کو مه آزادي چې دوی ته په غرب کې هم حاصله ده نو تاسو خپله ووایاست چې دوی پخپله ډیموکراټیک مرتدین نشول؟!

دا د لمر پـه څیر معلومـه خبره ده چې د ملا محمـد عمر د مجـاهـدینو لـه لوري ډیموکراســي تکفیر شـوی خو همدا مهال ددوی قیادت هیڅ مشــکل نه ورسـره لري بلکې ددوی رسنۍ د وطنیت د چوکاټ په ضد کې د ډیموکراسي تطبیقوونکو عسکرو ته یوازې د اجیر لفظ کاروي او هیڅکله یې دغه خائنان او جاسـوسـان د کفري دین د تطبیق له امله کفار ونه ګڼل، د طالبانو امارت له ډیموکرا سي سره اوس هیڅ م شکل نلري بلکې خپله هم ډیموکراټیکو او سـیکولر اصـولو ته ژمن شـوي خو دا چې ددوی صف به څه وخت او په څه ډول په ډیموکراټیک دین کې ورمنحل شي پدې الله عالم ده، ددوی د صــف د فکري پوهنې لپاره دوی ته د قطر تمثیلي سـټوډیو طرح شـوې چې له هغه ځایه وخت پر وخت د مذاکراتو، مرکو او ناستو په نوم ددوی په صف ګمراه کوونکې خبرې او تګلارې د دین او فتحې له نوم سره مل اورول کیږي چې همدا کار د طالبانو د کاروان د د دنیا او آخرت د تباهي مسـیر ده چې دوی پرې ور روان دي خو افســوس چې د اســلام له علم څخه ددوی بې خبره کاروان یوازې ړانده مقلدین دي

چې بې له تحقیقه او بې له فکر او سوچ کولو یوازې د خپلو خائنو مشرانو عبادت کوي هغه مشــران چې همدا مهال لګیا دي د طالبانو د ځانمرګو غوښــې او هډوکي له ډیموکراټیک نظام څخه ځاروي او دوی یې داده اوس دې خبرې ته ژمن کړي چې د افغان ملحد نظام ملکي او نظامي عناصــر یوازې اجیران دي او کفار نه دي! همدا بهیر به په مکر او فریب مخ پر وړاندې ځي تر هغو چې د طالب په ناخبره صــف کې د ډیموکرا سي ضد افکار ټول په یو نه یو ډول له منځه لاړ شي، لاره په مکمله توګه دغو خائنانو ته صفاء شي او دغه صف د غربي همجنسبازانو ډیموکراسي ته ورتسلیم کړي خو دا به هغه مهال وي چې پدې کار به تر ټولو زیات د همدې طالب کشــران نازیږي ځکه د اسلام او د فتحې په نوم به ددوی ذهنونه داسې تحریف او تسخیر شوي وي چې د ایمان او عقل هیڅ ماده به نه پکې لیدل کیږي بلکې په تدریجې توګه به دغه صف په کامله توګه له مشره تر کشره د ډیموکراټیکو افکارو درلودونکی یو صف وي نو هغه مهال که هیڅوک صــلح هم ونکړي نو دوی به پخپله ځانونه کفارو ته تســلیم کړي.

که د طالبانو په نظر د اســلامي خلافت مجاهدین خوارج وي نو دا خبره په ځای پریږدو خو له همدې مجاهدینو وروسته چې په عراق او شام کې ډیموکراټان حاکمان شول او په موصل کې کرسمسونه ولمانځل شول آیا دغو طالبانو پرې لږ خواشیني هم ونښــوده؟ آیا دوی دا افســوس وکړ چې له دومره وینو بهیدلو وروســته ولې باید په هغو

سـيمو بيرته ډيموکراټيک کفر حاکم شـي؟ او ولې بايد د اهل سـنتو له دومره قربانيو وروسـته روافض مشـرکين حاکميت ته ورسـيږي؟ هيڅکله نه! بلکې د همدې امارت رسنيو د امريکې د هر بم د راليدو په خوشحالي او د هر مشرک شيعه په دفاع کې د اسـلامي خلافت مجاهدين خوارج او بد خلک وبلل او ددوی دغه توره ځيره ځکه بربنده شـوه چې دوی هيڅکله هلته د ډيموکراټيک نظام په حاکميت خواشـيني ونه ښوده او ولې به خوا شيني ښيي چې دوی دلته خپله د ډيموکرا سي او سيکولريزم په مرضونو ککړ او د غرب د الحاد د پروژو مليشې ګرځيدلي!

نو د طالبانو د قيادت له همدې حرکاتو معلومه شـوه چې نن د آی ايس آی امارت له ډيموکرا سي سره هيڅ مشکل نلري بلکې د همدوی په دفاع کې د ا سلامي خلافت مجاهدين خوارج او تکفيريان ګڼي پداسـې حال کې چې د اسـلامي خلافت په ځير عين عقيده ا سامه بن لادن رحمه الله هم درلوده او معا صر مسلمان نماء ډيموکراټان يې سره لدې مرتدين بلل چې دوی لمونځ هم کوي.

پاکستان ته د أسامه بن لادن رحمه الله د يوه بيان يو څو ټکي په وروستي عنوان کې نيو طالبانو ته وريادوم که الله وکړي چې ددوی غوږونه خلاص شي چې نن د خوارجو او تکفيريانو شعار په حقيقت کې د امارت په غوږو کې چا ورڅخولی؟

## أسامه بن لادن رحمه الله او پاکستان

د دوهم نسل طالبان نه يوازې دا چې افغان سيکولر او بې دينه نظام ته د مرتد او کافر نظام خطاب نکوي بلکې د پاکســتان، قطر او داســې نورو کفري هيوادونو نظامونو ته هم د اســـلامي نظامونو نســـبتونه کوي بلکې د ســـتاينو ترانې ورته جوړوي او له هغو نظامونو سره موافق راغلي چې د تګلارې په اساس يې نر له نرانو او ښځې يې له خرو او سپيو سره واده کوي پداسې حال کې چې اسامه بن لادن پخپل يوه غږيز پيغام کې د پاکستان مرتد نظام د جمهوريت، وطنيت او ډيموکرا سي له وجې پدې دلايلو تکفير کړ چې الله سبحانه وتعالى فرمايلي چې:

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَـــجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا (النساء: ٦٥)

ژباړه: [نه] ستا سو په رب قسم چې هغوی به مؤمنان نشي مګر دا چې پخپلو شخړو کې تا دريمګړی ونه ګرځوي او بيا ســـتا له دريمګړي توب څخه پخپلو زړونو کې هيڅ

خواشــیني څرګنده نکړي او په ټوله معنی [دین، اسـلامي شـریعت او الهي قانون ته] تسلیم شي.

همدارنګه ا سامه بن لادن د الله سبحانه وتعالی دغه قول د پاکستان د نظام د تکفیر لپاره بیان کړ چې:

لَّا تَجِدُ قَوْمًا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ يُوَادُّونَ مَنْ حَادَّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَوْ كَانُوا آبَاءَهُمْ أَوْ أَبْنَاءَهُمْ أَوْ إِخْوَانَهُمْ أَوْ عَشِــيرَتَهُمْ أُولَٰئِكَ كَتَبَ فِي قُلُوبِهِمُ الْإِيمَانَ وَأَيَّدَهُم بِرُوحٍ مِّنْهُ وَيُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا رَضِــيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُــوا عَنْهُ أُولَٰئِكَ حِزْبُ اللَّهِ أَلَا إِنَّ حِزْبَ اللَّهِ هُمُ الْمُفْلِحُونَ (المجادلة: ٢٢)

ژباړه: ته به هیڅکله داســې قوم ونه مومې چې پر الله او د آخرت په ورځ ایمان ولري او هغوی دې له هغو خلکو سره مینه وکړي چې د الله او د هغه د ر سول مخالفت یې کړی وي، که څه هم د هغوی پلرونه وي، یا د هغو زامن، یا د هغو وروڼه وي یا د هغو ټبر او کورنۍ، دا هغه کسـان دي چې الله عزوجل یې په زړونو ایمان لیکلی او له خپل لوري یې د یوه روح په ورکولو تقویه کړي، الله به دوی داســې جنتونو ته داخل کړي چې لاندې به یې ویالې بهیږي او هلته به د تل لپاره اوسیږي، الله له دوی راضي شو او دوی له الله څخه را ضي شول، دوی د الله د ګوند خلک دي، خبردار واو سئ چې همدا د الله د ګوند کسان بری موندونکي دي.

أسـامه بن لادن د خپلو خبرو په أدامه کې د پاکسـتان حکومت ته د طاغوتي حکومت نسبت وکړ او ویې ویل چې: الله سبحانه وتعالی د هغو حال بیان کړی چې د طاغوت لاندې جنګیږي پدې چې دوی کفار دي او په کافرانو [د پاکسـتان په مرتدو فوځیانو] د جنازې لمونځ نه کیږي او نه به هم د مسـلمانانو په مقبره کې خښـولی شـي، الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

الَّذِينَ آمَنُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَـبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَـبِيلِ الطَّاغُوتِ فَقَاتِلُوا أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَانِ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ كَانَ ضَعِيفًا (النساء: ٧٦)

ژباړه: هغه څوک چې ایمان لري د الله سـبحانه وتعالی په لاره کې جګړې کوي او هغه خلک چې کافران دي د طاغوت په لاره کې جګړې کوي، نو تاسو د شیطانانو له دوستانو سره جګړې وکړئ [او له هغو مه ویریږئ] ځکه د شیطان نقشې [د شیطان د قدرت په څیر] ضعیفې دي.

په همدې توګه أسـامه بن لادن رحمه الله د پاکسـتان نظام او فوځ د شـیطان ملګري بولي او زیاتوي چې: او دا رد ده په هغه چا چې انکاري پوښـتنه کوي چې څنګه مجاهدین له پاکسـتاني فوځ سـره جنګیږي او وایي چې دا خو مسـلمان فوځ ده زه دا ورسـره زیاتوم چې همدا پاکسـتاني فوځ وو چې د قبایلو سـیمو ته لاړ تر څو [له مجاهدینو] سره وجنګیږي او دا ټول له امریکا سره د مرستې او د هغوی د مطالبو د

پوره کولو لپاره او دا ښکاره ده چې کله مسلمان له کافرانو سره دوستي وکړي او د مسلمان خلاف مرسته ورسره وکړي د هغه ایمان ماتیږي او پدې سره مرتد کافر کیږي لکه څرنګه چې د اودس لپاره نواقض شته داسې د ایمان لپاره هم نواقض شته او دا هم د هغه له جملې څخه دي ځکه الله سبحانه وتعالی فرمايي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَىٰ أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ (المائدة: ٥١)

ژباړه: ای هغو خلکو چې ایمان مو راوړي! یهود او نصارا خپل دوستان مه ټاکئ [ځکه] هغوی د یو او بل دوستان دي او له تاسو څخه چې هر څوک له هغوی سره دوستي وکړي د هغوی له جملې به حساب شي او الله سبحانه وتعالی د ظالمانو قوم ته هدایت نکوي.

شیخ رحمه الله زیاتوي چې: دا یو شرعي حکم ده، هر چا چې له دوی سره دو ستي وکړه نو د هغوی له جملې څخه ده یعنې د هغوی په شان کافر کیږي، نو چا چې له صلیبي امریکا سره مرسته وکړه آیا هغه خلک همدا د پاکستان حکومت او فوځیان نه دي؟ تاسو څنګه قضاوت کوئ؟ څوک چې له کافرانو سره دوستي کوي هغه د هغوی په شان ده او وژل یې واجب دي که څه هم لمونځ کوي او روژه نیسي او خیال یې دا هم وي چې مسلمان ده، زه دریادوم چې روسانو له افغاني [خلقیانو او کمونیستانو]

فوځ په مرســـته مجاهدینو ســـره جګړه کوله او نن امریکا په همغه شـــکل ددوی په مرسته دا کار کوي.

أسـامه بن لادن رحمه الله د پاکسـتان سـوء ملایانو ته په اشـارې زیاتوي چې: او نن ځنې علماء سوء له نوي مزدور [پاکستان] سره د مرستې په خاطر همغه خبیث نقش اداء کوي نو ددې کسـانو په کفر او نفاق کې مسـلمان شـک نکوي، دوی اسـلام او مجاهدین قرباني کوي ددې لپاره چې ژوند او مال لاســـته راوړي نو لازمه ده چې ددوی په څیر خلک په زور سره [د قتال في سبیل الله په مټ] د مرتدینو له همکاریو راوګرځول شي.

که چیرې نني طالبان یا ورته صـحوات د اسـامه بن لادن رحمه الله د پاکسـتان دغه بیان مسـتقیماً زرداري ته راجع کوي او وایي چې اوسـني حکمرانان یې د هغه په څیر باید تکفیر نشي نو زه بیا دا ورته وایم چې د پاکستان اوسني حکمرانان او اوسنی نظام یې د زرداري له نظام سـره څه توپیر لري؟ آیا دوی د امریکې له غلامي او مزدوري لاس واخیســـت؟ آیا دوی خپل نظام د جمهوریت او ډیموکراســـي له طلســـم څخه خلاص کړ؟ آیا دوی پارلمان نلري؟ آیا همغه ســـوء علماء یې د پارلمان په چوکیو نه دي ناسـت؟ نو ولې باید تکفیر نشـي پداسـې حال کې چې اوس هم په بشـپړه توګه د

غرب غلامي ته لاس په سینه ولاړ دي او نظام یې په همغو اصولو ولاړ او ډیموکراټیک نظام ده په کومو اصولو چې د زرداري نظام ولاړ وو.

اســامه بن لادن رحمه الله د خپلې وینا په ترڅ کې د پاکســتان فوځ مرتد فوځ بللی او ویلي یې دي چې په دوی باندې اعتماد نکوي مګر جاهل او منافق!

نو ای طالبه هر ژمی ســتاســو په زرګونو عناصــر د چا په حمایت د پاکســتان خاورې ته داخلیږي؟ تا سو چاته د خپل سر او مال اختیار ورکړی چې ستا سو مشران او کشران ټول هلته په أمن شـپې او ورځې تیروي؟ آیا د اسـامه بن لادن رحمه الله د وینا مطابق تاسو د جهل او نفاق لارې نه دي غوره کړي؟

نو کله چې د أســـامه بن لادن رحمه الله په نظر ســـره لدې چې په پاکســـتان کې امریکایان شـتون نلري او سـره لدې چې فوځیان یې لمونځونه کوي او روژې نیسـي فوځ یې مرتد وي نو د افغانســـتان د نظامیانو حکم به څه وی؟ تاســـو څه فکر کوئ د افغانستان د نظام فوځیانو ته به څوک د خپلو وروڼو خطابونه وکړي؟ آیا داسې نده چې د طالبانو صف په مکمله توګه د آی ایس آی له لوري تسخیر او تحریف شوی، اوس خائنان پرې حاکم او د ملا محمد عمر او اســـا مه بن لادن وینې په ډیموکراســـي ورځاروي؟

همدارنګه ا سامه بن لادن رحمه الله په یوه بل بیان کې د خپلو خبرو په ترڅ کې ویلي چې: او لکه څرنګه چې مونږ وضاحت ورکړی هر هغه چا چې له امریکې سره مرسته وکړه لکه د عراق منافقین او د عربي ممالکو حاکمان او هر هغه څوک چې پدې صــلیبي جګړې کې ددوی تابعداري وکړي او په جنګ کې له دوی ســره ودریږي، یا یې دوی ته قرار ګاه ورکړه، یا یې اداري مرســتې ورســره وکړې او یا یې په هر بل ډول مرسته ورسره وکړه اګر که په ژبې [خبرو] هم وي چې په عراق کې د مسلمانانو د وژلو سبب وګرځي نو دوی باید پدې پوه شي چې دوی مرتد او د اسلام له ملت څخه خارج دي هم یې مال حلال ده او هم یې وینه ځکه الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَىٰ أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ (المائدة: ٥١)

ژباړه: ای هغو خلکو چې ایمان مو راوړي! یهود او نصــارا خپل دوســتان مه ټاکئ [ځکه] هغوی د یو او بل دوستان دي او له تاسو څخه چې هر څوک له هغوی سره دوستي وکړي د هغوی له جملې به حساب شي او الله سبحانه وتعالی د ظالمانو قوم ته هدایت نکوي.

نو وګورئ د طالبانو د فعلي حنفیت مقایسه د اسامه بن لادن له عقیدې سره وکړئ او آیا داســې نده چې د اســامه بن لادن په خیر مجاهدینو ته د آی ایس آی حنفیان د

خوارجو او تکفیریانو نسبتونه کوي؟ وګورئ د طالبانو د دوهم او مرتد نسل انحراف او تغیراتو ته چې ددوی اول نسل په اسامه به لادن رحمه الله سر قربان کړ هغه اسامه بن لادن چې د همدې پاکستان تکفیر کوي خو بیا هم سره لدې چې د طالبانو نني کشران د اسامه بن لادن رحمه الله په نوم افتخار کوي خو خبر نه دي چې زمونږ د فعلي قیادت په حنفیت کې همغه اتلان هم خوارج او تکفیریان ګڼل کیږي!

په یاد ولرئ! هغه مهال ملا محمد عمر د اسامه بن لادن رحمه الله پدې حکم هیڅ انتقاد ونکړ او سره لدې چې اسامه بن لادن سلفي وو او ملا محمد عمر حنفي خو د قرآن او حدیثو په اساس ددوی روښ او پاک منهج د کفارو په مقابل کې همغه منهج وو چې نن یې د دوهم نسل طالبان د تکفیریانو او خوارجو منهج بولي.

## اسامه بن لادن او له وطني عقیدې بیزاري

دا د لمر په څیر واضـحه او روښـانه خبره ده چې اسـامه بن لادن رحمه الله له وطني عقیدې بیزاره او د سیکولر اصولو خلاف په نورو هیوادونو کې د شریعت د أقامه او یا د کفارو د ربړولو لپاره په هغوی کې مداخله کوونکی او حمله کوونکی مجاهد وو او هغه رحمه الله هیڅکله خپله توره د وطني، سیکولر او ډیموکراټیکو اهدافو د پلي کولو لپاره نه وه اوچته کړې بلکې د پاکســتان خلکو ته د بیان په ترڅ کې دغه اتل وویل چې د سـپتمبر په یوولسـمه هغو نولسـو تنو مجاهدینو په امریکه کې د فلسـطین د مؤمنانو د دفاع لپاره حمله وکړه، اســامه بن لادن رحمه الله د وطني عقیدې درلودونکي چې د بین الملل د کفري اصولو تابعداران وي تکفیرول او د حماس د وطني او سیکولر ډلې په تړاو یې په یو بل بیان کې د هغوی د وطنیت او د بین المللي اصــولو د منلو په تړاو ویلي چې:

او د عقل خاوندان باید د حماس له ظلم څخه عبرت واخلي کوم ظلم چې د حماس قیادت په دوی [د فلسـطین په مسـلمانانو] وکړ، کله یې چې د ریاض د حاکم او نورو اطاعت وکړ نو له همدې امله یې هم خپل دین ضــایع کړ [مرتد شــول] او هم دنیا،

دوی په ملي وحت [وطني] حکومت کې داخل شــول او د بین الملل د ظالمو قوانینو احترام یې وکړ.

اوس که تاسو دا انتقاد کوئ چې له یو لوري د فلسطین د خلکو په انتقام د سپټمبر په یوولسـمه حمله کوي او له بل لوري د حماس د ډلې تکفیر، نو آیا دا متناقضــې خبرې نه دي؟ نه دا خبرې هیڅکله متناقضـــې نه دي ځکه اســامه بن لادن رحمه الله د فلسطین د سیکولر حماس خیلو او مرتدو اخوانیانو په دفاع کې د سپټمبر د یوولسمې حمله نه بلکې د فلســـطین د عام رعیت او مؤمن ولس په دفاع کې همغه کفر لړزوونکي عملیات تر سـره کړل عیناً هغه کار لکه د اســلامي خلافت مجاهدینو چې نن د شـــام د مؤمنانو د انتقام په هوډ په ســریلانکا کې تر ۱۰۰۰ تنو پورې صــلیبیان هلاک او ژوبل کړل خو ورسره په شام مسلط شوی سیکولر، ډیموکراټیک او رافضي نظام لله الحمد تکفیروي.

خو نن د طالبانو د دوهم نســل کاروان چې ځانونه هم اســامه بن لادن او ملا محمد عمر ته منسوب بولي په وطني او ډیموکراټیکو اصولو روان او دغه ګمراهي العیاذبالله اسـلام ته هم منسـوبوي او بیا خپل همدغه عمل په نوي حنفیت یا د آی ایس آی په کتابچو کې رانغاړي او بې ددوی له سیکولر افکارو نور ټول افکار چې ا سامه بن لادن رحمه الله په څیر مجاهدینو پخپلو زړونو کې حمل کول د خوارجو د تهمت په نوم کفر

او ګمراهي بولي خو ددوی لدې عقیدې او تګلارې الله، رسول، مؤمنان، د ملا محمد عمر حنفیت او د اسامه بن لادن رحمه الله فکر او تګلاره بیزاره ده، ان شاءالله تعالی.

## آیا أسامه بن لادن رحمه الله رښتیا په پاکستان کې شهید شو؟

نه! هېڅکله نه!

که هر ســنګر وو، که هر غر او که هره دره وه، که پخپل مرګ وو او که په توره بوره یا وزیرســتان کې د B52 ټن ټن بارود خو د پاکســتان ایبټ آباد هیڅکله نه وو، ایبټ آباد یوه جوړه شوې ډرامه وه چې عقل ته هیڅکله د منلو نده ځکه د هغې دورې په مؤمنو قائدینو امریکې د آی ایس آی له لارې زیاتې ملنډې پدې هوډ ووهلې چې ګویا د عصــر منصــورة طائفو ته به نور د پاي ټکی کیږدي او د اســامه بن لادن رحمه الله د افکارو په اساس د اسلامي خلافت د راڅرګند شوي څرک مخه ونیسي خو لله الحمد دوی سره له دغو ټولو شیطانتونو الله سبحانه وتعالی و شرمول، مات او ذلیل شول او اسلامي امت ته الله عزوجل د اسلامي خلافت نعمت ورنصیب کړ.

د ملا محمد عمر مرګ یې د طالبانو د صــف د تحریف په هوډ پټ وساته او د هغه په نوم یې وطني او ســیکولر اپلتې په ډیر مکر او فریب په خلکو اورولې تر څو د هغه له آدرسه صف ګمراه او خپلو بې دینو اصولو ته یې ژمن کړي او د ا سامه بن لادن مرګ یې ځکه د پاکستان له ایبټ آباد څخه تمثیل کړ تر څو دغه دجالان خپل هغه ر سنیز شــیطا نت ته د مکار ثبوت جامې ورواغوندي چې ګویا جهاد او مجا هدین ټول د

پاکستان او د امریکې سازشونه دي نعوذباالله، د همغه مکر او شیطانت پلي کول چې نن یې له امله ډېر د پوچو ککریو خاوندان په منلو اســلامي خلافت ته هم د امریکې پروژه وایي، ولا حول ولا قوة الا باالله...

غربي شــیطانانو د ایبټ آباد له ډرامې غوښــتل تر څو خپل مکار او فریب ورکوونکی پیغام، فکر او عقیده په خلکو کې راشــنه کړي، دا چې پاکســتاني ډیموکراټیک او مرتد نظام د ا سلام او مجاهدینو په ضد تل خیانتونه تر سره کړي او تل یې د هغه ځای او ددې ځای د شـهیدانو په وینو ملنډې وهلي او دا چې د رسـنیو له لوري هم د وطنیت د سیکولر عقیدې د پخولو په اساس د افغانستان په خلکو منل شوې چې د پاکستان نظام یوازې د افغانستان ډیموکراټیک حکومت سره د ښمني لري او د منصورة طائفو او قتال في سبیل الله بهیر او تسلسل هم د پاکستان او غرب سازش ده نو له همدې امله غربي کفارو وغوښــتل چې د ۱۱ د ســپټمبر د حماســو زیږوونکی او د عصــر د منصــورة طائفې ســتر قائد اسـامه بن لادن رحمه الله هم د پاکســتان په نوم بدنام او تورن کړي، د پردیو د لاس آله یې ثابت کړي او په افغانســـتان کې په نړیوالو افکارو روزل شــوي مؤمنان ددغې تګلارې په اړه شــکمن کړي نو همدغه د ایبټ آباد ډرامه یې په لاره واچوله چې تر شا یې ډېر ژور ژور شیطاني رازونه پراته وو.

د ایبټ آباد په ډرامې کفارو په حقیقت کې د مؤمنانو، مجاهدینو او ځوانانو عامه افکار د خپل هغه شـیطانت په لوري انتقال کړل چې ګویا قتال في سـبیل الله، د الله عزوجل په لار کې قرباني او د منصـورة طائفو تسـلسـل او قائدین یې ټول د امریکې پروژې او د غرب خلک دي نعوذبالله.

خو پدې شیطانت غربي بې دینانو له ا سلامي امت څخه د نفسي خواهشاتو پیروان، منافقان، فاسـقان او د جهاد په نوم اسـلام نماء خائنان د ځان په لوري مائل کړل، د جهاد فاسـدوونکي ددوی په لور ورټول شـول او نن داده ګورئ چې د امارت په نوم سیکولر ملیشې هم ددوی ا صولو ته ژمن، ددوی د وطنیت او ډیموکراټیکو افکارو په لار کې خپلې وینې بهوي او فکر کوي چې د اسـا مه بن لادن رحمه الله د لارې لارویان د امریکې پروژې او د هغوی خلک دي، لکه څرنګه چې د ملا محمد عمر مرګ یو مرموز مرګ وو او د ټکنالوژې پدې عصر کې یې د جسد یو عکس هم چا ونه لیده همدارنګه د اسامه بن لادن رحمه الله مرګ هم په مرموزه توګه پټ وساتل شو او لکه څرنګه چې د ملا محمد عمر مرګ د یوې دروغجنې ناروغی له کبله اعلان شـو همدارنګه د اسـا مه بن لادن رحمه الله مرګ هم د دجالي کفارو د یوې دروغجنې ډرامې په ترڅ کې د امت د ګمراه کولو لپاره د ایبټ آباد په نوم اعلان شو!

خو پدې کار سره کفارو خپل باطل پرسته څاروي د خپل ځان په لوري ټول کړل، لله الحمد مؤمنان اوس هم پخپل صف کې د اسامه بن لادن رحمه الله په څیر ولاړ او په همغه فکر او عقیدې خپل سرونه ځاروي د کومې عقیدې کربشې چې له بین المللي ا صولو په بغاوت ا سامه بن لادن رحمه الله پخپلو وینو، زخمونو او قربانیو دغه امت ته رسم او سرونه یې ځنې قربان کړل.

لله الحمد د تورو بیرغونو خلافت سره لدې اعلان شو چې کفارو یې په ضد د خپل شیطانت ټول اسباب وکارول او نن داده ګورئ چې له هرې سیمې د ا سلامي نظام، اسلامي خلافت او د نړیوالو افکارو درلودونکي مؤمنان د مهاجرینو په شکل د اسلامي خلافت خاورو ته ځانونه رسوي او هیڅکله د غرب شیطاني ډرامو، تبلیغاتو او شیطانتونو دغه اتلان له نړیوالو افکارو په شا نکړل بلکې ورځ تر بلې په زیاتیدو او پراخیدو دي ان شاءالله.

نو مونږ له همدې ځایه غربي او ماتو ګیدړانو ته اخطار ورکوو چې د الله عزوجل په نصرت د ډیموکراټیکو نظامونو په جامو کې ستاسو شیطانتونو ته به د پای ټکی همدا د اسامه بن لادن رحمه الله د لارې لارویان او د خلافت اتلان ږدي اګر که تاسو یو موټی سیکولر او طالبي ملیشې د سولې په نوم ځانو ته تسلیم کړئ او اګر که په مونږ ټن ټن بارود او سپین فا سفورس وکاروئ او اګر که له مونږ څخه زمونږ ځمکې ونیسئ

ځکه اوس هم فکر او جذبه شــته، افکار وروزل شــول او د ډیموکراټیک کفر پرځول او دغه روښ حقیقت به سل په سله پلی کیږي، مؤمنان به فاتحین وي، محمد مهدي به ظهور کوي او په ټوله ځمکه به د الله ســـبحانه وتعالی دین، شـــریعت او قانون پلی کیږي ځکه زمونږ پیغمبر محمد الرسول الله صلی الله علیه وسلم ددغو پیښو خورا متعددې وړاندینې کړي، ان شاءالله تعالی.

## حکیم الله محسود او د پاکستاني نظام تکفیر

دا چې د ملا محمد عمر په صــف کې په راڼه منهج صــادقینو شــتون درلود او د نني اسلامي خلافت د منهج په څير يې په عامه توګه د قرآن او سنتو په رڼا کې جمهوریت تکفیراوه او له وطني سیکولر عقایدو یې بیزاري ښودله نو د صادقینو پدې کاروان کې یو هم حکیم الله محســود تقبله الله وو چې نوموړي د خپل یوه بیان په ترڅ کې ویلي و چې:

قاضي حسین ته په خطاب: مونږ ته فرق واضح کړه چې افغانستان کې جهاد ته ولې جهاد وایې او پاکستان کې جهاد ته ولې فساد وایې؟ مونږ وپیژندلې چې ته وطنپرست یې، ته د وطن حفاظت غواړې ته د اســلام حفاظت نه غواړې ته د خپل مســجد او مدرسې حفاظت نه غواړې ته له خپل اقتدار څخه ډ شې تیریدلی وطنپر ست یې او له اسـلام سـره محبت نلرې سـیکولر نظریه لرې د سـیکولر نظریې بچی یې له سـیکولر نظریې راپیدا شوی بچی یې!

بیا د خپلو خبرو په دوام کې وایي چې: د پاکســتان قانون کفري قانون ده او پدې کفري قانون فیصــله کول کفر ده او ددې کفر دلیل الله ســبحانه وتعالی په قرآن کې بیان کړی چې: وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ (المائدة: ٤٤) پدې

کفري نظام باندې چې چا فیصــله وکړه کافر ده، فأولئلک هم الفاســقون... فاســقان دي فأولئلک هم الظالمون... ظالمان دي.

حکیم الله محسود تقبله الله د پاکستان د حنفي علماؤ مشر قاضي حسین احمد ته په خطاب دغه خبرې کوي هغه قاضي حسین أحمد چې د خپل خود ساخته حنفیت په رڼا کې یې د پاکســتان طاغوتي، شــیطاني او انګریز حکومت مشــروع بللی او د اسلامي نظام خطابونه یې ورته کړي او د پاکستان ملت یې پخپلو شیطاني فتواګانو په سیکولریزم او لادینیت کې ورګډ کړی او نن د طالبانو حنفیت هم د پاکستان او د آی ایس آی له همغو سوء علماؤ سرچینه اخلي او دوی همغه حنفیت په افغانستان کې هم راوستل غواړي په کوم حنفیت چې د پاکستان نظام د قاضي حسین احمد په فتوا اســلامي شــو نعوذبالله، د همدې حنفیت په رڼا کې به مرتد طالبان یوه ورځ خپل افغان ډیموکراټیک نظام هم اســلامي اعلان کړي ځکه دوی به دغه کفري او ډیموکراټیک حاکمیت تزکیه پخپلو خیرنو ځنو کوي عیناً لکه څرنګه چې د پاکستان د مرتد نظام مداریان یا همغه ســوء ملایان د خپل نظام پاکوالی د خپلو نمایشــي زیرو او دستارونو له آدرسه بیانوي.

ننی افغاني امارت او د پاکستان د تحریک والا چې د سیکولر اصولو پر بنیاد یې خپل ځانونه هم په وطنونو وویشــل اوس هم په بې شــرمي د حکیم الله محســود تقبله الله

همدې شعار ته ځانونه منسوب بولي خو په حقیقت کې دا ډېره سپکه خبره ده ځکه حکیم الله مسعود د استخباراتي او دجالي سیاست او وطنیت په چوکاټ کې د خپلې مبارزې اعلان نه کاوه بلکې په اول قدم کې یې له وطنیت څخه په بغاوت له مرتدینو بې زاري وښودله او ورپسې یې د پاکستان ټول نظام [فوځیان، استخباراتي کارمندان او ټول حکومتي مرتدین] تکفیر کړل او بیا یې د پاکستان مرتد حکومت ته اخطارونه واورل خو دا چې د پاکستان تحریک طالبان والا اوس په اول قدم کې په وطنیت قسم خوري، په دوهم قدم کې د پاکستان د مرتد فوځ او نظام تکفیروونکي خوارج او تکفیریان ګڼي او وروسته له هغه د جاهلو جګړو دعوې د اسلام په نوم کوي نو دغې جګړې ته به څه اسلامي تقدس حاصل وي او دغې جګړې ته به له کوم امله د حکیم الله محسود په د تګلارې جګړه وویل شي؟

همدارنګه حکیم الله محسود تقبله الله پخپله بله مرکه کې ویلي چې: بله خبره دا چې مونږ د جمهوریت قائل نه یو، د جمهوریت نظام د الله جل جلاله د نظام مخالف نظام ده، کفري نظام ده مونږ د جمهوریت قائل نه یو که چیرې د جمهوریت قائل وای نو مونږ به هم جمهوري میدان ته راوتلي وای لیکن مونږ جمهوریت کفر بولو او له همدې وجې مونږ د الله عزوجل نظام د الله په ځمکه غواړو نو د الله نظام د الله په ځمکه د جهاد په مټ نافذیږي او ان شاءالله یو وخت به راشي چې خلافت به د مسلمانانو وي!

حکیم الله محسود د خپلو خبرو په ادامه کې د پاکستان مرتد حکومت ته خپل ثبات د اخطار په څیر وړاندې کوي چې که چیرې د شمالي نه بلکې د جنوبي وزیرستان په ګز ګز هم یو پاکســـتاني فوځي کښـــیني زه له خپلې علاقې څخه نه وځم او بله خبره دا چې د نړۍ په نظر کې یوازې اورکزی او یا شمالي او جنوبي وزیرستان دي خو تاسو نه پوهیږئ چې الله سـبحانه وتعالی فرمایلي چې: أَرْضُ اللَّهِ وَاسِـعَةً فَتُهَاجِرُوا (النسـاء: ٩٧) ؟

خو اوس نه پوهیږم چې نني افغاني او پاکسـتاني طالبان په کوم دین روان دي؟ دوی د کوم مذهب خلک دي؟ ولې د خپل اول نسـل په پرتلې داسـې په مذبذب حالت کې قرار لري او ددوی قیادت د چا لاســو ته لویدلی، په چا یې اعتماد کړی چې له خپلو اولو دعوو یې سل په سله بغاوت وکړ بلکې نن چې هر څوک د همدې مشرانو په څیر خبرې وکړي هغه ددوی د آی ایس آی په حنفیت کې تکفیری او خوارج ده؟! خو ددوی د آی ایس آی له حنفیت څخه مؤمنان بیزاره دي او دوی هیڅکله امام ابوحنیفه رحمه الله ته منســوبولی نشــو ځکه دوی د کفر کړنلارې ټاکلي او د حنفیت نوم یوازې د وســلې په څیر ددوی یوه آله ده چې نن یې د مؤمنانو د ګمراهي په هوډ کاروي.

## اوسني طالبان او پاکستان

اوســني طالبان د أســامه بن لادن، حکیم الله مســعود او ورته نورو پخوانیو صــادقینو رحمهم الله اجمعین په خیر د پاکســتاني حکومت تکفیر نکوي، دوی د پاکســتان فوځیان او ورسره د افغانستان فوځیان سوچه مسلمانان بولي او هر څوک چې دوی ته د مرتدینو خطاب وکړي هغه ددوی په نوي حنفیت کې تکفیری، خوارج او وهابی وي.

ملا محمد عمر ته د جهاد تسـلسـل د روسـانو په ضـد له جنګېدونکو مجاهدینو او د هغوی له ګمراهي وروســته ورپاتې شــو او دا چې د روســانو په مقابل کې امریکې د افغانســتان مجاهدینو ته ســلاح او نور اکمالات د آی ایس آي له لارې رســول نو د پاکســتان د آی ایس آی اداري د افغانســتان په مجاهدینو کې له همدې لارې پراخ نفوذ کړی وو او همغه خلک بیا هم د ملا محمد عمر په صــف ورننوتل کومو چې د پردیو اهدافو د لاسته راوړلو لپاره د روسانو په جګړه کې نقشونه درلودل، ددغه مرحوم ملا د قیادت لاندې یې هغه مهال هم ناکاره کړنې ترسره کولې او د امریکې له حملې

او د مشر ملا د امارت له ړنګیدو وروسته دغو خائنانو ته په بشپړه توګه میدان خالي شو او پاکستان یا د همغې آی ایس آی د شیطانتونو ځالو ته یې ځانونه ورور سول له کوم ځایه چې پخوا دوی د روس په ضـــد اکمال شــوي او تغذیه شــوي وو، خو دا ځل افغانستان ته د روسي ډیموکراسي په ځای د غرب ډیموکراسي راغلې وه، دا ځل د آی ایس آی باداران افغانســتان ته راغلي وو نو له همدې امله د پاکســتان مرتد نظام اول امریکې ته د ملا محمد عمر په امارت د حملې کولو لپاره هوایي اډې ورکړې او له هغه وروســته یې بیرته د طالبانو په صــف کې د موجودو خائنانو له وجې د امارت ټول صــف د خپل وزر لاندې د امریکې په امر او مشــوره راټول کړ تر څو دا صــف د کفارو لپاره په فکري ډول او پداســې ډول تحریف او تسـخیر کړي چې د ابد لپاره د امریکې له دښمنۍ لاس په سر شي او په هغه نظام کې ورمنحل شي کوم چې امریکې د ملا محمد عمر د امارت په ځای تأسیس کړ.

هو! همداسې ده، د پاکستان مرتد نظام د غرب په امر د افغانستان د نظام د دښمنانو د له منځه وړلو کو ښښونه وکړل ځکه د پاکستان او افغانستان نظامونه دواړه د غرب غلامان او ډیموکراټیک، جمهوري، سیکولر او د یو او بل وروڼه نظامونه دي، له همدې امله پاکســتان د امریکې په امر د افغاني ډیموکراټیک نظام د اســاســاتو په محکمتیا کې خورا مهم مهم کارونه تر سره کړل چې غواړم پدې اړه بعضې حقایق په لاندې ډول بیان کړم.

- د پاکســتان طاغوتي نظام د طالبانو په حمایت لاس ندی پورې کړی بلکې د امریکې په امر، د امریکې په مشــوره، د امریکې د ګټو د خوندیتوب لپاره او د غربي پروژې یا همغې ډیموکراسي د تحکیم لپاره یې طالبان ددې لپاره په غیرہ کې وســاتل تر څو تخریب، تحریف او تســخیر یې کړي او د ابد لپاره د افغان – امریکایي نظام دښمنان له دوی سره دوستان او د ډیموکراسي د چتر لاندې یو کړي.
- د ملا محمد عمر صـف یې له هغو مشــرانو صـفا او خالي کړ چې د اسـامه بن لادن رحمه الله په تګلاره روان، ډیموکراســي یې تکفیرو له او هیڅکله یې د سولې په نوم د تسلیمي نوم نشو اخیستلی.
- باالمقابل د آی ایس آی له لوري د طالبانو په صــف کې مشــران، والیان، ولسوالان او نور قومندانان داسې څوک نصب کړل شول چې د اخلاقي فسادونو کچه یې تر ټولو اوچته وه، دغه خلک یا اخلاقي مفسدین وو، یا په سپین دستار کې د پوډرو قاچاقبران، یا د اســلام په نوم وتلی او غلام شــخصــیتونه او یا د روسانو له وخته د آی ایس آی او سي آی اې افغاني مامورین چې لدې جملې د عباس ستانکزي نوم ډاډه اخیستلی شو.
- په فکري ډول یې ددوی رســنۍ هم خپلې کړې او د ملا محمد عمر د مرګ د پټ ســاتلو وروســته یې له همدې رســنیو په شــیطاني بڼه او په کرار کرار هغه

ګمراهی نشـــرولې چې هیچا ته معلومات نه کیده چې څه روان دي او څه به وشـــي؟ له همدې رســـنیو د مؤمنانو په ضــد او یا ددوی د تحریف لپاره وخت پر وخت د وطنیت په عنوان ســـیکولر زهر، د حنفیت په نوم غلطې عقیدې، افواهات او تهمتونه نشریدل چې همدا مهال هم په دیر زور سره روانې دي.

- د طالبانو په قیادت کې د آی ایس آی د رسوخ له کبله ددوی له لوري په طالبانو کې د سمې عقیدې د خلکو امریکې ته په نښه کول، وژل یا زنداني کول او همدا علت ده چې اســـتاد یاســـر او ورته نور مجاهدین په پاکســـتان کې آی ایس آی شـــهیدان یا زندانیان کړل خو عباس ســـتانکزي او ورته نورو خائنانو ته د امن په کور بدل شـــو، او له همدې امله نن هم د طالبانو په پاڅکونو هیڅکله امریکایي الوتکې حملې نکوي خو په بعضـــو عناصـــرو یې چې د ملا داد الله په فکر کې زنګیرې او یا نور علتونه د هغوی کور او ټبر یې هم له خاورو ســـره خاورې کړ او وروسته لدې یې هم کوي!
- طالبان د حنفیت په نوم د هغو افکارو په ضد استعمالول چې د اسلامي نظام د تحکیم نړیوال فکر ورسره او له وطني او سیکولر حدودو په بغاوت د الله عزوجل په لاره کې قتال کوي ځکه د طالب د تحریف او تسخیر تر ټولو لوی هدف همدا وو چې که طالبان وژنې هم کوي نو باید د وینو ګټې یې سیکولریزم ته ورسیږي نه اسلام ته.

- باالآخره د پاکستان مرتد نظام په همدې توګه د امریکې په امر چې په رسنیو کې ظاهراً د افغان حکومت په ضـــد له طالبانو څخه د پاکســـتان حمایت په نوم تمثیلېده او تمثیلیږي پاکســـتان د افغان او غربي نظام په ګټه ددوی ټول د ښمنان له ا سلام څخه بیلارې کړل او نږدې ده چې د پاکستان او امریکې د همدې شـــیطانت په مټ د ملا محمد عمر ټول صـــف په افغاني دیموکراټیک حکومت کې ورمنحل شي.

نو د امریکې په امر او د پاکستان له لوري پورته ذکر شوي شیطانتونه د طالب په صف تر سره شول چې دغه موارد د طالب او پاکستان د یارانې د ملا د تیر حیثیت درلود، په پاکســـتان کې د طالب له ســـاتلو که غیر لدې بل هدف وي نو هغه به هېڅ هم نه وي بلکې مطمئن یم چې همدې خبیث پاکستان به هغه مهال بیا هم د طالبانو مشران او کشـران د ملا محمد عمر او اسـامه بن لادن رحمهم الله د مهاجرینو او مجاهدینو په څیر امریکې ته په قفس کې حواله کول!

همدارنګه له عقیدوي اړخ څخه د کوم حنفیت چیغې چې د دوهم نســل امارت وهي تر شـا یې د همغې آی ایس آي او د قاضـــي حســین احمد او ســمیع الحق شــرابي ســـیکولر حنفیت ولاړ ده چې غیر له خپلو ســـیکولر افکارو نورو ټولو مؤمنانو ته د تکفیریانو او خوارجو نسبتونه کوي.

## د ملا عمر او اسامه بن لادن نه بیلیدونکي نومونه او ددوی مذهبونه!

د مسلمانانو تر منځ د نړیوالو کفارو د تفرقې و سیله نه یوازې دا چې سیکولر وطنونه او د جهل په تقلید مذهبونه او تنظیمونه دي بلکې دغو شـــیطان صـــفته ګمراهانو په مختلفو نومونو او افکارو د مســـلمانانو تر منځ د فرقو او ډلو فریبونه رامنځته کړې، د خپلو روزل شویو جا سو سانو په مټ د تفرقې دغه تخمونه د مؤمنانو تر منځ شیندي او په منځ کې بیا خپل شوم پلانونه عملي کوي پداسې حال کې چې الله سبحانه وتعالی مؤمنانو ته فرمایلي چې:

وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ (الروم : ٣١) مِنَ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا ۖ كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ (الروم : ٣٢)

ژباړه: او د مشرکانو په څیر مه جوړیږئ [د هغو مشرکانو په څیرا] چې خپل دین یې په فرقو [مذهبونو، ډلو، وطنونو] وویشـــه [عجیبه دا چې] هره ډله چې له ځان ســـره څه لري همغه ته خوشحال وي [یعنې هره ډله له بلې ډلې ځان افضل بولي].

له قرآن، حدیثو او د صـــحابه کرامو له فهم څخه ورآخوا نورې ټولې ډلې وروســـته د تعصباتو په اساس را پیدا شوي چې دا کار له همغو مشرکانو سره ددوی تشبیه ده چې

ځانونه یې په فرقو وویشـــل او هرې ډلې او مذهب په هغه څه افتخار وکړ چې ددوی ملایانو له ځانه ورښودلي او بیا یې نوم پرې ایښی وو چې هذا من عند الله...

خو پدې ډول زمونږ ملا عمر او زمونږ اســامه بن لادن رحمهم الله هیڅکله ځانونه په فرقو ونه ویشـل بلکې د کفارو په مقابل کې او د اسـلامي نظام او حاکمیت په کچه یو وجود او یو تن وو چې همدې صـادقو مؤمنانو په یو او بل ځانونه هم قربان او د کفر په مقابل کې یې یو او بل ته لاس ورکړ، دا چې ملا محمد عمر په افغانستان کې زیږیدلی او دلته یې خپل دیني علوم تر سره کړي وو نو معلومه ده چې نوموړي د حنفي مذهب په اساس دیني تعلیمات ترسره کړي وو خو ملا محمد عمر هیڅکله له عربو مهاجرینو سره د کفارو په مقابل کې او د حاکمیت په سطح کوم تعصـب د وهابیت په نوم ونکړ بلکې له همدې مظلومو مهاجرینو زمونږ قدرمن ملا ځان قربان کړ او د ژوند تر آخري سـلګیو یې له ملاتړ څخه تیر نشـو خو ای افسـوس چې د اسـلامي امت دغه ابطال لاړل او نشته هغه چې د مسلمانانو د اتحاد آرمانونه یې له وطني سیکولر حدودو ورآخو نن هم د امارت په صف کې او پخپلو سینو کې حمل کړي وای.

د روسـانو له راتګ څخه مخکې په افغانسـتان کې حنفیت په کوم ډول مخ پر وړاندې روان وو؟ آیا د قبرونو او زیارتونو عبادت ښه په زور نه و روان؟ آیا زیارتونو ته به ذبحې نه کیدلې؟ آیا له زیارتونو به مر ستې نه غو ښتل کیدې؟ وګورئ په افغا ستان کې چې په

کومو زیارتونو شــرکي اعمال ترســره کیږي هغه څه وخت جوړ شــوي وو؟ خو الله عزوجل په افغانستان کې د روسانو له راتګ سره د جهاد د نعمت دروازې پرانیستلې او له امله یې د نورې نړۍ صــادقو مؤمنانو راتګ ته لاره هواره شــوه، د اســامه بن لادن رحمه الله د مجاهدینو په څیر د هدایت مصـــدرونه راغلل، د خلکو افکار یې د ملا محمد عمر په څیر اتلانو ســره یو ځای او په یوه عقیده وروزل او عجیبه دا چې هغه مهال د کمونیســت نجیب له لوري هم دغه اتلان د وهابیانو په نوم یادېدل او نن هم د همغو په لاره روان مجاهدین د وهابیانو، خوارجو او تکفیریانو په نوم یادیږي.

اســامه بن لادن رحمه الله د ملا محمد عمر په ملګرتیا د کفر، شــرک، ســیکولریزم او ډیموکراسي مکارۍ او شیطاني څیرې بربنډې کړې، د بین الملل له سیکولر او وطني اصـــولو یې بغاوتونه وکړل، په نورو کفري هیوادونو کې یې مداخلې وکړې او د خالص دین د مشعل په څیر یې ځانونه هم له همدې افکارو و سوځول خو افسوس چې نن د مســکو یاران د نجیب ګاو په څیر یو ځل بیا د وهابیانو د نعرو په وهلو دلته د آی ایس آی حنفیت تطبیقول غواړي او دا ځل هوډ لري چې د امریکې ډیموکراټیکه پروژه د پاکستان د آی ایس آی د حنفیت په رڼا کې په خلکو د اسلام او امام ابوحنفیه رحمه الله په نوم وروټپي او هغو مؤمنانو ته د نجیب ګاو په څیر د وهابیانو نســـبتونه وکړي چې له ســـیکولر او وطني اصــولو بیزاره او په ټوله نړۍ کې د اســامه بن لادن

رحمه الله په څیر یوازې او یوازې د اســـلامي شــریعت تطبیق د یوه ولي الأمر د چتر لاندې غواړي.

د أسـامه بن لادن رحمه الله او ملا محمد عمر مذهب یوازې او یوازې اسـلام وو او د همدې دین د چتر لاندې همغه عرب مهاجر په افغانستان کې د قتال في سبیل الله فریضه اداء کوله او ملا محمد عمر یې د غر په څیر تر شا ولاړ او سر یې ځنې قربان کړ، ددوی تر منځ هیڅکله وطني، مذهبي او قومي تعصــبونه نه وو مطرح بلکې د ولاء او براء په اسـاس یې د نړۍ هر مؤمن خپل عزیز ګاڼه او د خپل وطن هر مرتد یې کافر باله.

نن د آی ایس آی له لوري تغیر شــوی حنفیت د وطن او مذهب په نوم خلک د بې دینیو په لوري کشــول غواړي، دوی غواړي چې د آي ایس آی د حنفیت په رڼا کې د افغانســتان خلک هم د پاکســتان په څېر د دین په نوم د ډیموکراســي د چتر لاندې راولي او لکه څرنګه چې شرابي سمیع الحق د سیکولریزم د ا صولو د تطبیق په هوډ سـپین دسـتار تړلی دوی هم په افغانسـتان کې همغه دسـتار په سـر کول او د غرب همغه ډیموکراټیکه پروژه تطبیقول غواړي خو د الله سبحانه وتعالی په نصرت دوی به هیڅکله خپلو شومو اهدافو ته ونه رسیږي او په الله عزوجل قسم چې دوی او ورسره د غرب د ډیموکراسي د شیطانت په رأس کې ولاړ امریکایان به خپل دغه آرمانونه ګور

ته وړي او د اســلامي خلافت معزز مجاهدین به دلته او په نوره نړۍ کې ټول شریعت، قانون او حاکمیت یوازې او یوازې الله لره کوي، ان شاءالله تعالی.

د ا سامه بن لادن رحمه الله عقیده سره لدې چې د قرآن او حدیثو عقیده وه خو مشر حنفي ملا هیڅکله د پاکستان د قصه خوانۍ د کتابچو او د هغوی د مداریانو د قولونو په اســاس دوی د وهابیت په نوم ونه رټل بلکې عجیبه دا چې له همدې وهابیانو یې خپل امارت، خپل اهل او خپل سر قربان کړ او د خپل حاکمیت په سطحه یې د کفارو په مقابل کې په کلکه د خپلو مؤمنو وروڼو ملا وتړله خو نن راشــئ وګورئ چې په اسلامي خلافت بمبارونه د امریکې الوتکې کوي او چکچکې همدا احمق او د امارت د دوهم نسل قیادت او ورسره مداریان یې ورته وهي او عجیبه دا چې په دوحه او قطر کې له امریکایانو سره ناست او د داعش د له منځه وړلو قسمونه یادوي نو تاسو خپله ووایاســـت چې د ننیو طالبانو د وهابیت او حنفیت د فتنو اچولو منبع به کوم ځای او څوک وي؟

د طالبانو په نوم ننۍ سیکولر او پردۍ ملیشې پرته له شکه د نړیوالو ملحدینو له لوري اداره کیږي او دغو جاهلانو هیڅکله د ډیموکراټیکو نظامونو په مقابل کې دومره سختي ونه ښودله لکه څرنګه چې نن د هغو مؤمنانو په مقابل کې سختي ښیي چې د بین الملل کفري او ســیکولر قوانین پایمالوي، د مســلمانانو تر منځ د تفرقو او وطني

حدود نه مني او ټوله نړۍ په یوه توحیدي بیرغ پو ښلې او د یوه قیادت لاندې راو ستل غواړي.

هو د طالبانو په نوم اوس موجود ګیدړان یوازې او یوازې د کفري پلانونو، پروژو او شـیطانتونو عملي کوونکي دي چې یوازې نوم یې د اسـلام پرې ایښـی او نور په هغو لارو سر دي په کومو چې امریکایان او نړیوال وحشیان ځنې راضي دي.

## طالبان اوس د کوم دین او عقیدې پیروان دي؟!

حقیقتاً دا یو مهم سـوال ده څکه الله سـبحانه وتعالی هېڅ داسـې سـاکنښ ندی پیدا کړی چې بې مفهومه وي او هېڅ داسې انسان نشته چې د کوم دین پیرو دې نه وي اګر که د معاصر ډیموکراټیک دین په اساس څانونه بې دینه وبولي خو بیا هم دوی په حقیقت کې د الله عزوجل له رالېږل شـوو پخوانیو او اوسـني اسـلامي دین څخه مخ ګرځولی او پخپل زړه یې څانو ته د لادینیت دین جوړ کړی، دا چې طالبانو هم د اسـلامي دین حدود مات کړي او د نورو مقلدین ګرځېدلي او دا چې طالبان څانونه اوس هم اسلام ته منتسب بولي نو لازمه بولم تر څو د مرتد امارت دغه دعوه ددوی د ګڼ شمېر خطاء عقایدو په بیان څرګنده کړم چې دوی اوس د کوم کوم دین پیروان او د چا پیروان دي؟!

### په طالبانو کې د مرجئه ؤ عقیده:

دا چې د نني امارت په نوم د آی ایس آی او سي آی اې ګډې ملیشې د افغانستان په شـمول ټول ډیموکراټیک نظامونه یوازې د ژبې د اقرار له وجې مؤمنان بولي او عمل د ایمان په تکمیلیدو پورې نه تړي نو پرته له شـکه چې دوی د مرجئه ؤ خویونه خپل

کړي او همدا علت ده چې دوی د خپلې همدې ناکاره عقیدې په اســاس افغاني او پاکســتاني فوځیان نه تکفیروي او د هغوی د ایمان لپاره د هغوی یوازې لمونځونه او اودسونه کافي بولي پداسې حال کې چې په مخکې عنوان کې مونږ د أسامه بن لادن رحمه الله عقیده او نظر هم د هغو ډیموکراټیکو عسکرو خصوصاً د پاکستان د فوځیانو په اړه بیان کړ چې له کفر ســره مل لمونځونه هم کوي، هغه رحمه الله فرمایلي وو چې: [او دا ښکاره ده چې کله مسلمان له کافرانو سره دو ستي وکړي او د مسلمان خلاف مرســته ورســره وکړي د هغه ایمان ماتیږي او پدې ســره مرتد کافر کیږي لکه څرنګه چې د اودس لپاره نواقض شته دا سې د ایمان لپاره هم نواقض شته او دا هم د هغه له جملې څخه دي ځکه الله سبحانه وتعالی فرمایي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَــارَىٰ أَوْلِيَاءَ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ (المائدة: ٥١)

ژباړه: ای هغو خلکو چې ایمان مو راوړی! یهود او نصــارا خپل دوســتان مه ټاکئ [ځکه] هغوی د یو او بل دوستان دي او له تاسو څخه چې هر څوک له هغوی سره دوستي وکړي د هغوی له جملې به حساب شي او الله سبحانه وتعالی د ظالمانو قوم ته هدایت نکوي.]

نو که چیرې طالبان همدا مهال پاکســتاني او افغاني ډیموکراټان نه تکفیروي او فکر کوي چې ایمان هیڅ ناقض نلري، د مرجئه ؤ د عقیدې په څېر خپل منهج صــحیح بولي، ددوی یوازې د ژبې اقرار کافي او ددوی د تکفیر له امله مونږه تکفیر یان او خوارج بولي نو د أســامه بن لادن رحمه الله پورتنی خبرې ته چې د الله عزوجل په کلام یې استدلال ورباندې کړی نني طالبان څه ځواب ووایي؟

پدې شپو ورځو کې د حنفیت په نوم له پاکستانه د کتابچو شور او زور ډیر زیات شوی، د دین په نوم دغه بې اساسه ورقې د انټرنیټي مداریانو او کوڅه په کوڅه د ګرځېدونکو تبلیغیانو په مټ ښه په مخ روان ده او دا چې د سوء ملایانو له وجې د خلکو تراو هم تر ډیره بریده له همدې امله له قرآن او حدیثو پرې شوی او یوازې د یوه ملا یوه بې دلیله خبره او یا د قصــه خوانۍ په کومه کتابچه کې بې اســاســه خبره د فتوا په څیر پخپلو زړونو کې ځایوي نو د مرجئه ؤ عقیدې یې په مټ تر ډیره بریده پدې امت کې ځای پیدا کړی او د حنفیت په نوم د آی ایس آی جاســوســانو د مســلمانانو د کم علمي له همدې نقطې په بدې اســتفادې خپل خراب او غیر اســلامي افکار په خلکو کې شــنه کړي.

نو راځو د مرجئه ؤ په عقیدې مختصــرې جملې لیکو تر څو وپوهیږو چې مرجئه څه عقیده لري او دا چې طالبان هم د ایمان تړاو له اعمالو ســره نه جوړوي او مرتد

ډیموکراټان په کفري اعمالو نه تکفیروي نو دوی څنګه او په کوم دلیل د مرجئه ؤ عقیده خپله کړې ده؟

دا چې د مرجئه ؤ د عقیدې خاوندان عقیده لري چې اعمال د ایمان له دائرې څخه خارج دي او عقیده لري چې ایمان یوازې او یوازې د زړه تصـــدیق ته وایي، یا ایمان د زړه تصـــدیق او د ژبې اقرار ته وایی او ددوی په نظر أعمال د ایمان له اجزاؤ څخه نه شـمیر کیږي بلکې اعمال د ایمان د تکمیلیدو له شـرطونو څخه نه بولي او په همدې ا ساس هر هغه څوک چې له زړه د الله عزوجل په وحدانیت او د ر سول الله صلی الله علیه و سلم په ر سالت ت صدیق وکړي او پخپله ژبه اقرار وکړي کامل مؤمن ده اګر که واجبات ترک کړي، محرمات ترسره کړي، اګر که د خیر هیڅ عمل هم تر سره نکړي او د ایمان نواقض هم ځنې ظاهر شـي خو بیا هم جنت ته د داخلیدو مسـتحق ده نو پرته له شـکه دغه ډول عقیده په روښـانه له قرآن او حدیثو او د اهل سـنتو له عقیدې سره مخالفت لري او دغه ډول عقیده د ا سلامي امت په لور د شر او فساد د دروازو د خلا صولو په معنی ده، دین تجزیه کوي او خلک د شریعت او تقوا له رعایت څخه بې توجه او بې پروا کوي، ددغه ډول عقیدې په منلو لکه څرنګه چې همدا مهال د دوهم نسل په طالبانو کې ګورئ أمر باالمعروف او نهی عن المنکر تعطیل شوی، ددغه ډول عقیدې په درلودلو هر هغه څوک چې د شریعت په مکمله توګه پابندي کوي له فا سد،

فاســـق او له الهي شـــریعت څخه بې توجه کس ســـره په یوه تله وزن کیږي ځکه د مرجئه ؤ د همدې عقیدې په اساس ګناه په ایمان هیڅکله تأثیر نه غورځوي.

خو پدې خبره مونږ د ټولو ګناهونو تأثیر له تکفیر ســـره نه تړو بلکې د ګناهونو د تأثیر خبره دلته د ایمان د کمښت او زیاد ښت له امر سره تړو، د مرجئه ؤ د همدې عقیدې په اساس ګناه که هر څومره ډیره وي او که هر څومره لویه وي په ایمان هیڅکله تأثیر نه غورځوي خو لله الحمد د مرجئه ؤ د همدې فاســـدې عقیدې په ضـــد د اســـلام پخوانیو او اوســـنیو علماؤ ډیره توجه کړې او د مرجئه ؤ د ډلې په تعریف او رد کې یې خاص عنوانونه او کتابونه لیکلي او شـــیخ الأســـلام ابن تیمیه رحمه الله خو پدې اړه مستقل کتاب هم لیکلی ده.

دا چې اعمال د ایمان جزء او حقیت ده پدې اړه الله ســـبحانه وتعالی فرمایلي چې:
إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ إِذَا ذُكِرَ اللَّهُ وَجِلَتْ قُلُوبُهُمْ وَإِذَا تُلِيَتْ عَلَيْهِمْ آيَاتُهُ زَادَتْهُمْ إِيمَانًا وَعَلَىٰ رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ (٢) الَّذِينَ يُقِيمُونَ الصَّلَاةَ وَمِمَّا رَزَقْنَاهُمْ يُنفِقُونَ (٣) أُولَٰئِكَ هُمُ الْمُؤْمِنُونَ حَقًّا ۚ لَّهُمْ دَرَجَاتٌ عِندَ رَبِّهِمْ وَمَغْفِرَةٌ وَرِزْقٌ كَرِيمٌ (الأنفال : ٤)

ژ باړه: ایمان لرونکي یوازې هغه خلک دي چې کله د الله ســـبحا نه وتعالی نوم واخیســـتل شـــي نو په زړونو کې یې ویره راشـــي او کله چې [د الله عزوجل] آیاتونه ورته واورول شي نو ایمان یې زیات شي، یوازې پر الله توکل کوي، هغه خلک چې د لمانځه

خيال ساتي او کومه روزي چې مونږ ورکړې له هغې څخه انفاق کوونکي وي، پرته له شکه همدا په حقه مؤمنان دي چې د الله سبحانه وتعالی په نزد د لوړو درجو درلودونکي، له ګناهونو څخه يې تيريدنه او ډيره ښه روزي ده.

همدارنګه د مرجئه ؤ د عقيدې په رد کې د الله سبحانه وتعالی د کلام دغه آياتونه چې:

قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُونَ (١) الَّذِينَ هُمْ فِي صَلَاتِهِمْ خَاشِعُونَ (٢) وَالَّذِينَ هُمْ عَنِ اللَّغْوِ مُعْرِضُونَ (٣) وَالَّذِينَ هُمْ لِلزَّكَاةِ فَاعِلُونَ (٤) وَالَّذِينَ هُمْ لِفُرُوجِهِمْ حَافِظُونَ (٥) إِلَّا عَلَىٰ أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ فَإِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُومِينَ (٦) فَمَنِ ابْتَغَىٰ وَرَاءَ ذَٰلِكَ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْعَادُونَ (٧) وَالَّذِينَ هُمْ لِأَمَانَاتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَاعُونَ (٨) وَالَّذِينَ هُمْ عَلَىٰ صَلَوَاتِهِمْ يُحَافِظُونَ (٩) أُولَٰئِكَ هُمُ الْوَارِثُونَ (١٠)

ژباړه: پرته له شکه ايمان لرونکو کاميابي ترلاسه کړې، هغو [ايمان لرونکو] چې په لمانځه کې عاجزي غوره کړې او هغو [ايمان لرونکو] چې له عبثو کارو څخه يې مخ اړولی او هغه [ايمان لرونکي] چې د زکات ورکوونکي وي او هغو [ايمان لرونکو] چې د خپل شرم ځايونو ساتنه کوي، [جنسي نږديوالی] يوازې له خپلو ښځو او کنيزو سره کوي چې پدې کار سره دوی ملامت نه شميرل کيږي البته که څوک لدې پرته نور څه وغواړي هغوی زياتی کوونکي دي او هغه [ايمان لرونکي] چې د خپلو امانتونو،

ژمنو او تړونونو خیال ساتي او هغه [ایمان لرونکي] چې د خپلو لمونځونو خیال ساتي، همدغه [مؤمنان] خپله وارثان دي.

همدرانګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي چې: الْإِيمَانُ بِضْعٌ وَ سَبْعُونَ شُعبَةٌ؛ أَعلَاهَا قَوْلُ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَدْنَاهَا إِمَاطَةُ الْأَذَى عَنْ الطَّرِيقِ: وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِنْ الْإِيمَانِ.

ژباړه: ایمان څو اویا شعبې لري چې تر ټولو بهتره [شعبه] یې د لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ ویل دي او تر ټولو ټیټه [شعبه] یې له لارې څخه د اغزیو [موانعو] لیرې کول دي او حیاء د ایمان له شعبو څخه شمیرل کیږي.

نو اوس که داسې فرض کړو چې یوه ډله رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ووایي چې: هر څه چې تاسو له الله څخه راوړي په هغه له زړه ایمان لرو، په ژبه هم د توحید کلمه وایو خو په هیڅ امر کې ستا اطاعت نکوو، لمونځ نکوو، روژه نه نیسو، حج نکوو، رښتیا نه وایو، له امانت سره خیانت کوو، په وعده وفاء نکوو، صله رحم نکوو، په هغو نیکو کارو چې تاسو امر کړئ عمل نه پرې کوو، شراب خورو، د خلکو مالونه لوټ کوو، له کفارو سره لاس دوستي او له مسلمانانو سره جګړې کوو، پخپل حاکمیت کې أمر باالمعروف او نهی عن المنکر نکوو، په عمل کې پخپله خوښه ځانو ته حلال او حرام ټاکو نو آیا دا سې کوم عاقل شته چې ووایي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم به

دغو خلکو ته په خواب کې ووايي چې: تاسـو ایمان لرونکي مؤمنان یاسـت، ایمان مو هم کامل ده، د قیامت په ورځ به سـتاسـو شـفاعت هم کوم او امید لرم چې له تاسـو څخه به هیڅوک جهنم ته هم لاړ نشي؟ بلکې هر مسلمان پدې پوهیږي چې داسې خلکو ته به رسول الله صلی الله علیه وسلم ووايي چې: تاسو د الله سبحانه وتعالی په أمر تر ټولو سخت کافر یاست او که چیرې دغو خلکو توبه نه کولی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به یې حتماً څټونه ترې وهل.

همدا علت ده چې پرون أسامه بن لادن رحمه الله د همدې عقیدې په اساس د هغو خلکو ایمان مات او نقض وباله چې له لمونځونو سـره سـره یې د کفارو پیروي او ډیموکرا سي ته ملا تړلې وه او پرته له شکه چې نن هم د همغه اتل د لارې لارویان د خپل رانه او محمدي منهج په رڼا کې ټول هغه مرتدین تکفیروي چې د ایمان نواقض پکې ظاهر شـوي وي اګر که لمونځونه وکړي او اګر که په ژبې اقرار وکړي خو بیا هم مرتد او کافران دي!

خو د طالبانو خود ساخته حنفیت نن د مرجئه ؤ په عقیده روان او د ډیموکراټیک کفر د تطبیق مدافعو فوځیانو او لارویانو ته جاهل تأویلونه کوي او فکر کوي چې اسامه بن لادن رحمه الله له دین او د تکفیر له موانعو یو ناخبره انسان وو.

نو دا چې طالبان د ډيموکراسي او سيکولريزم تکفير نکوي او سره لدې هغه مرتدين مسلمانان ګڼي کومو چې له امريکې سره مل په اسامه بن لادن او ملا محمد عمر خروج وکړ او له هغوی يې د مؤمنانو په ضد مرستې واخيستې او پدې مؤمنانو يې ځمکه سور اور وګرځوله او له خپل کور، کلي او وطن څخه يې وشړل نو پدې ځای کې د طالبانو د نه تکفير له امله ددوی عقيده خطاء او پرته له شکه دوی د مرجئه ؤ په تقليد د دين د تکفير تر ټولو لوی اصل او سياست تر شا پريښی.

## په طالبانو کې د خوارجو صفتونه:

په پورته عنوانونو کې وا ضحه شوله چې د ډيموکرا سي پيروان هم د قرآن او حديثو په رڼا کې مرتدين دي او هم د اسامه بن لادن او أبو مصعب الزرقاوي د فتواګانو په رڼا کې تکفير شوي نو د خوارجو يوه علامه داده چې دوی به کفار ژوندي پريږدي او مؤمنان به وژني چې دغه کار طالبانو په ځلونو ځلونو تر سره کړی، دوی د اسلامي خلافت مجاهدين سره لدې وژني چې دوی يې د تکفير هيڅ دليل نلري او لله الحمد د ايمان هيڅ ناقض نلري خو بالمقابل دا چې د ډيموکراټيک کفر د پيروانو په خبيثو سيرتونو کې چې په لسګونو د ايمان روښانه نواقض شتون لري او له قرآن او حديثو يې دلايل دومره روښانه دي چې حتی يو ماشوم هم پرې پوهيدلی شي بلکې د همدې طالبانو او القاعدې د اول نسل له لوري هم تکفير شوي نن يې طالبان په جګړه کې د صلحه رحم په نوم ژوندي خوشې کوي!

أبو مصـــعب الزرقاوي تقبله الله چې کنیه نومونه یې طالبان اوس هم په ځانو ږدي د ډیموکراټیکو کاندیدانو او حتی د رأیې ورکوونکو په اړه فرمایلي چې: [والمرشـــحون للأنتخاب هم ادعیاُ لربوبیة والألوهیة، والمنتخبون لهم قد اتخذون اربابا و شــرکاء من دون الله و حکمهم في دین الله الکفر والخروج عن الاسلام.

ژباړه: پرته له شــکه ټاکنو ته کاندیدان د خدایي دعوې کوونکي دي او هر هغه څوک چې دوی ته رأیې ورکوي بې له شکه چې غیر له الله څخه یې په خدایي نیـسي چې د الله عزوجل په دین کې ددوی حکم کفر او له اسلام څخه خروج [ارتداد] ده].

مونږ اضــافه لدې نور څه نه دي ویلي، مونږ د همغه أبو معصــب الزرقاوي تقبله الله د خبرې چې په قرآن او حدیثو اســتواره ده لارویان یو او اوس هم ډیموکراســي په همغه څیر تکفیروو او په همغه څېربېزاري ځنې کوو، نو د طالبانو کشــران د أبو مصـــعب الزرقاوي تقبله الله په اړه هم د خوارج او تکفیري عقیده لري او که اوس یې ســـر خلاص شـو چې د اسـلامي خلافت په نسـبت د خوارجو او تکفیریانو کاذب شـعار په دوی کې چا ورشین کړی؟

دوی د همدې ډیموکراســـي پیروان د مرجئه ؤ په تقلید مؤمنان بولي او د خوارجو په تقلید یې په جګړه کې ژوندي خوشـــې کوي او د وژلو لایق یوازې او یوازې هغه ګڼې

چې د همغه اسامه بن لادن او همغه أبو مصعب الزرقاوي تقبلهم الله د لارې لارویان وي.

له بل لوري طالبانو بیا هم د خوارجو په تقلید شـیعه مشـرکینو ته امان ورکړی او هیڅکله یې په هغوی کومه حمله تر سـره نکړه، هغه شـیعه ګان چې په تیرو عنوانونو کې مونږ د امام ابو حنیفه رحمه الله په شمول د ټولو اهل سنتو رأیه ددوی په اړه ذکر کړه چې دغه مشرکین واضح کفار دي او د امام ابوحنیفه رحمه الله د قول په ا ساس هر څوک یې چې کافر نه ګڼي هغه هم ورسـره کافر ده خو طالبان چې ځانونه اهل سـنتو او حنفیت ته منسـوب بولي هیڅکله یې دغو مشـرکانو ته د مرتدینو او یا کفارو نسبتونه ونکړل، سره لدې چې دوی په وسله او جهاد ځانونه ملبس بولي خو هیڅکله یې هغو سـپین سـترګو مشـرکانو ته یوه ورځ اخطار قدرې ورنکړ چې صـحابه کرام تکفیروي! دوی هیڅکله شـیعه مشـرکینو ته اخطار ورنکړ چې أم المؤمنین عائشـه رضي الله عنها ته العیاذبالله د زناکاري نسبتونه کوي، یوه ورځ یې دغو فاحشو کفارو ته دا ونه ویل چې خلفاء راشـدینو ته بد نسـبتونه مکوئ کنه ماغزه به درپه ځای کړو بلکې ددوی سرې او شنې قطې د اسلامي خلافت په لوري حشر شوي د هغه صف په لور چې فکر او تګلاره یې د قرآن او حدیثو پر اساس بناء او د همغه اسامه بن لادن او ابو مصعب الزرقاوي عقیدې او د امام ابو حنیفه رحمه الله قولونه تاسو ته بیانوي!

نو له همدې وجوهاتو په طالبانو کې د خوارجو صــفتونه ظاهر شــوي چې د امام ابوحنیفه رحمه الله عقیده له دوی څخه بیزاره او هیڅکله دغه ډول مفســدین هغو صادقینو ته نشو منسوبولی.

## په طالبانو کې د لادینیت یا د سیکولریزم د نوي دین عقیده:

د سیکولریزم او الحاد د راټوکیدو د تاریخ او ددوی د افکارو او ټګلارو د زیات وضاحت لپاره مونږ په ځلونو ځلونو تاســو ته نور کتابونه، رســالې او مقالې لیکلي چې د غه څهارپایان د پخوانیو ادیانو لکه نصرانیت، عیسویت او یهودیت په اساس خلک نه وزن کوي بلکې د پخوانیو ادیانو په اســاس له تفرقې پرته باید ټول یوازې د انســانیت په تله وزن شــي، هیڅوک حق نلري چې بل انســان د بل دین یا عقیدې له وجې ټیټ او یا کم ارزښــته وبولي بلکې هر عیســوی، هر یهودي، هر هندو او هر هغه مسـلمان چې همدا ا صول ومني د ډیموکرا سي په چوکاټ کې یوازې د ورونو په څېر انسانان دي او مشــابه حقوق لري او همدا تر ټولو لوی علت ده چې د آی ایس آی حنفیان چې د طالب په جامه کې کثیف وجود لري هیڅکله د شـیعه ایزم د مشـرک دین پیروانو ته د حنفیت دعوت نه ورکوي او هیڅکله یې هغوی ته د کافر او مرتد نســبت ونکړ ځکه دوی ټولو د خپلو زیرو تر شــا په یوه بل دین [ډیموکراســي، لادینیت او ســیکولریزم] اجماع کړې او په همغه تله یو او بل وزن کوي او د اســلامي خلافت مجاهدین ځکه

منفور، خوارج او تکفیریان بولي چې دغه صادقین له دوی سره په سیکولر او ملحدو اصـولو اجماع نلري بلکې همدې طالبانو په ځلونو ځلونو د هغو سـوء ملایانو چې اهل حدیثو ته ځانونه منسوب بولي په صفت شخوندونه وهلي چې ددوی د کوم مشر او یا ددوی د ټول صـف صـفت یې کړی وي ځکه هغه وهابي له دوی سـره په سـیکولر اصـولو اجماع لري نو ځکه یې هم دوی د وهابیت په ټکي نه رټي بلکې د زړه سـر یې شي او بیا یې دوی هم په صفتونو خولې وخیري.

د ډیموکراسـي او سـیکولریزم په نوي دین کې چې نن طالبان هم پرې روږدي شـوي هیڅوک د بهتر او بدتر تر منځ د تفکیک لپاره چاته دا نشي ویلی چې ته کافر یې او زه مسـلمان، هیڅوک حق نلري چې په یو کفري عمل یو چاته ووایي چې ته پدې عمل مرتد شوې ځکه د سیکولریزم په دین کې د تعلقاتو بنیاد دین نه بلکې یوازې او یوازې هغه مکار او سیکولر انسانیت ده چې دوی له اسلامي چوکاټه ورآخو په حماقت ورته ژمن شـوي، نو له همدې امله دا چې طالبانو د سـیکولریزم په دروازو پل ایښـی نو تل هغو ته د خوارجو او تکفیریانو نسـبتونه کوي څوک چې هغه خلک تکفیروي چې د ایمان نواقض پکې موندل کیږي، پداسې حال کې چې الله سبحانه وتعالی مونږ ته د اعلی او ادنا تر منځ د توپیر د معیار پـه اړه فرمـایلي چې: وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ (آل عمران : ۱۳۹) ژباړه: او همدا تا سو اوچت [بهتر او عالي] یا ست خو که چیرې مؤمنان واوسئ.

هیڅوک پدې نوي ډیموکراټیک دین کې بل ته نشـــي ویلی چې ته ځکه له ما ټیت او بې ارزښـــته یې چې ته مشـــرک رافضـــي او شـــیعه یې، هیڅوک حق نلري چې د سـیکولریزم او الحاد په اسـاس خپل کوم هندو وطندار ته د کافر نسـبت وکړي بلکې هغه به د وطنیت په پنجره کې بند دده خپل ورور او وطندار وي او له همغو حقوقو او امتیازاتو به برخمن وي له کومو چې پدې وطن کې یو مسلمان هم برخمن وي.

نو دا چې نن امارت د وطنیت سیکولر فکر خپل کړي، د جمهوریت ا سا سي او کفري قوانین کفر نه بولي، ډیموکراټانو ته د مرتدینو خطاب نکوي او شـــیعه مشـــرکینو ته د عقیدې او ایمان له تفکیکه پرته د خپل ورور خطاب کوي نو دا همغه د الحاد او سـیکولریزم اصـول دي چې پدې اصـولو کې د کفر او ارتداد الفاظ منع الفاظ اعلان شـوي ځکه دغه الفاظ د یو انسـان بشـري حقوق پایمالوي هغه بشـري حقوق چې نړیوالو دهریانو نړۍ ته وضـع کړي او وروســته لدې ورته ژمن وي چې د انســانانو غوږنو او هډوکو په سوځولو ددوی په ځمکه د لادینیت او ډیموکراسي تخم وشیندي.

نو پدې اساس په ډاډ ویلی شو چې نني امارت له همدې امله د سیکولریزم او الحاد یا د ډیموکراســي د نوي دین نســل او پیروان هم دي چې حنفیت په ځای پرېږده بلکې ا سلام ته یې هم نشو منسوبولی، دوی د نړیوالو کفارو په معا صر نوي دین کې منحل

شــوي او په همغه لاره روان دي کومه چې ددوی مخکینیو مشــرانو مردوده او د کفر لاره بللې وه.

## طالبان د آی ایس آی د سوء او ډیموکراټیکو علماؤ حنفیان:

د پاکستان د ډیموکراټیک نظام  سوء او مرتد عالم قاضي حسین احمد، مولانا فضل الرحمان، سـمیع الحق شـرابي وغیره... چې په سـپینو دسـتارونو کې او د خپلو اوږدو ږیرو په مټ د کفارو  شیطاني پروګرامونه، عقیدې او حاکمیتونه پلي کوي پرته له  شکه چې نن  سبا یې د حنفیت واکی پخپلو لا سو کې نیولی او پخپله خو نبه یې تحریفوي، دغه خبیثان خلک ډیموکراټیکو انتخاباتو ته د اســلام په نوم وربولي پداســې حال کې چې ډیموکراسي په هیڅ صورت له اسلام سره اړخ نه لګوي بلکې اسلام ځنې بیزاره او په قران، حدیثو او د صحابه کرامو په سیرت کې د ډیموکراسي او د بغیر ما أنزل الله د  حاکمیتونو په تکفیر کې په ســلګونو دلایل او حجتونه پراته دي خو د انګریزانو له لوري دغو روزل شــوو خائنانو د خپل خود ســاخته حنفیت په کتابچو کې د اســلام خطابونه ورته وکړل، نعوذباالله.

وګورئ! له علي جناح مرتد څخه راواخله تر اوسه پورې د همدې ډیموکراټیک نظام د سیوري لاندې د پاکستان د اهل په کومو ګمراهیو سر شو؟ د پاکستان په حنفیت کې کوم کار نده چې نه تر سره کیږي؟ د تصوف ډمتوب، له ښځینه ډمانو سره مل د مولود

په ویاړ سـندرې، پیرانو ته سـجدې، د پیغمبري دعوې، ښـځینه نظامیانې، ښـځینه سـپورتي ټیمونه، تبلیغي جماعت چې په بدعتونو او ګمراهیو مشـتمل او د اسـلام د سیاست له منځه وړونکی جماعت ده، د پاکستان همدې سوء ډیموکراټیکو علماؤ له لوري د صلیبیانو د کرسمس خوش آمدید پیغامونه، عامې او علني فاحشه خانې او په سلګونو نورې ګمراهی چې د همدې ډیموکراټیکو سوء ملایانو له برکته د دین په نوم په مکر او فریب په کرار کرار هلته عمداً رائجې شوي، نو دا سې کانې بیا دغو مرتدو او خائنو سـوء او درباري ملایانو په اسـلام وکړې، وګورئ ددغو فسـادونو، فسـقونو او ګمراهیو نمونو ته چې د همدې ډیموکراتیکو ملایانو چې د اسـلام اسـلام د نعرو په وهلو یې خپل رعیت په مکرونو او فریبونو او د اسـلام په نوم د بې دیني او الحاد د کومو کندو په لوري کش کړ؟! وګورئ چې په یو نظام کې د امر باالمعروف او نهې عن المنکر امر پر ځای نشي د هغوی پای او انجام به څه شي؟ همدا مهال اوریدل کیږي چې حتی د پاکسـتان اوسـنی مرتد نظام په رضـا سـره زنا کولو ته هم په اجازو ورکولو شخوندونه وهي او پدې اړه هلته په زرګونو فاحشو لدې شعار سره مظاهرې کړي چې میرا جسم میرا مرضي!

نو وا د طالب کشره! ته څه فکر کوې چې دغه د پاکستان تحریف شوی حنفیت چې د پاکسـتان د مرتد او خائن نظام د چتر لا ندې و خت پر و خت د ډیموکراسـي او سیکولریزم د ګټو د خوندیتوب لپاره اپډیټ کیږي تاسو به په کوم لوري سوق کړي؟

پرته له شــکه چې نن طالبانو هم خپل پخوانی منهج هیر کړی او د قاضــي حســین احمد سیکولر او سمیع الحق چې د شرابو له بوتلو سره مل هلاک شو په حنفیت پل ایښی او اوس غواړي چې د ا سلامي نظام د اقامه په م سیر کې چې په لکونو طالبانو خپلې وینې وبهولې د دهمدې سوء او خائنو ملایانو په تقلید په افغا ستان کې د خپلو فدایانو په غوښــو او هډوکو ځانو ته په افغان ډیموکراټیک نظام کې چوکۍ جوړې کړي او د حنفیت په نوم خپل صف په کفري پروژې کې ورمنحل کړي.

## د طالبانو د حنفيت تر شا د ډيموکراټيک الحاد وحشي پنجې

پرته له شـکه چې نن طالبان او يا د آی ايس آی د سـيوري لاندې د قصـه خوانی په ملايي نصــاب روزل شــوي ملايان د حنفيت نعرې د ډيموکراټيکو اهدافو د پلي کولو لپاره وهي ځکه که چيرې دوی ته خپل حنفيت مطرح وای نو دوی به اقلاً يوه ورځ هغو شيعه مشرکانو ته د حنفيت دعوتونه ورکړي وو چې صحابه کرام تکفيروي، قرآن کريم نيمګړی بولي، علي رضي الله عنه حاضر، ناظر، سميع او بصير بولي خو ددوی د حنفيت د ليونتوب رګ يوازې هغه مهال په خوځيدا شــو چې کله هم د قرآن او حديثو پيروانو ته الله عزوجل د آخرې زمانې د تورو بيرغونو عزت ورکړ، دغو حنفيانو هيڅکله د هغې کفري ډيموکراسي رد ونکړ او خلکو ته يې نصيحت ونکړ چې د حلالو او حرامو يا همغه شــريعت، قانون او پادشــاهي حق يوازې او يوازې الله لره ده بلکې مونږ وليدل چې پدې شــپو کې ډيرو ســيکولر حنفيانو له ډيموکراټيک نظام څخه وغوښتل چې د وهابيانو مخه ونيسي!!!

د قصه خوانی محصول او د صوفيت په ډمتوب روزډو شوو جاهلانو ته خپل حنفيت هغه مهال مطرح شـو چې کله هم په ټوله نړی کې له سـيکولر او ډيموکراټيکو اصـولو بيزاره اسـلامي خلافت الله عزوجل دغه امت ته ورنصـيب کړ ځکه ددوی په معاصـر

حنفیت کې د ډیموکراټیک دین تطبیق ته تر ټولو زیات تأویلونه شـــوي، دوی هیڅکله کومه ورځ شـیعه مشـرکینو ته د حنفیت د دعوت په هوډ یو دوه کرښـــې ونه لیکلې او هیڅکله یې د هغوی د باطلو عقایدو په اړه کومه ورځ کوم رد ونه لیکه ځکه همدغه معا صر طالبي حنفیت، شیعه ایزم، عیسویان، هندوان او یهودان په یوه بل نوي دین راټول شوي چې هغه دین د ډیموکراسي او سیکولریزم دین ده او بیا په وازه خوله دوی ټول له یوې زاویې د وهابیت په نوم مؤمنان رټي او په ضد یې کتابونه او رسالې چاپوي.

نو ځکه هم مونږ په عنوان کې دا خبره واضحه لیکلې چې د طالبانو د حنفیت تر شا د دیموکراټیکو او دهري اهدافو پنجې خښـــې دي چې پخوانی حنفیت یا امام ابوحنیفه رحمه الله لداســـې عقایدو، افکارو او شـــیطانتونو پاک او منزه خلک وو بلکې کوم څه چې معاصـر ګمراهان د ډیموکراسـي د دفاع لپاره حنفیت ته منسـوبوي حنفیت ځنې بیزاره او دوی سوچه ډیموکراټان دي چې له دین څخه داسې وتلي لکه غشي چې له کمان څخه خارجیږي.

## له قرآن او حدیثو پرته له مذاهبو [فرقو] د معاصر تقلید حیثیت!

پدې کې هیڅ شک نشته چې په اسلامي امت د راغلو مصیبتونو تر ټولو لوی لامل ددغه امت تفرقې او په ډلو ډلو ویشل کیدل دي چې دغه ویش ته نن سبا تر ټولو زیات هغه خلک خوشحا له او دغه عمل ته په نیکه سترګه ګوري چې د دین درانه مسئولیتونه یې هم په اوږدو بار دي چې پدې کتار کې تر ټولو زیات د دین ملایان او له فرقو څخه تقلید کوونکي علماء دي، خندوونکې دا چې کله چې همدغه ملایان د مسجدونو په منبر ودریږي نو اول خواست یې له الله سبحانه وتعالی څخه همدا وي چې ای الله اسلامي امت متحد او متفق کړه خو کله چې له قرآن او سنتو څخه یو څوک ټول امت د یووالي او اتحاد په لور وروبولي، خلک له تفرقو، مذاهبو، تنظیمونو او ډلو ټپلو څخه منع کړي او د مسلمان له نوم څخه د مذاهبو او فرقو پسوندونه او پیشوندونه آخوا کړي او د یوه مسلمان په حیث خلک د قرآن او حدیثو پیروي ته د صحابه کرامو په فهم راوبولي نو فوراً همدا سوء علماء د وهابیت لفظ له خولې راوباسي او بیا یې هیره شي چې مونږ پخپله هم د مسلمانانو د اتحاد آرمانونه لرل او

همدا خواست مو له الله سبحانه وتعالی څخه درلود چې ای الله ا سلامي امت متحد او متفق کړه!! پداسې حال کې چې د همدې علماؤ له منبرونو د مذهبونو د تقلید په نوم مسلمانانو ته د فرقو فرقو ویشل کیدو تر ټولو زیات ترغیبونه صادریږي.

هر څوک چې په اسلام کې تفرقو، مذاهبو، وطني تعصبونو او ورته نورو ناخوالو ته ژمن وي نو الله سبحانه وتعالی ددوی تشبیه له مشرکانو سره کړې او فرمایلي یې دي چې:

وَلَا تَكُونُوا مِنَ الْمُشْرِكِينَ (٣١) مِنَ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا ۖ كُلُّ حِزْبٍ بِمَا لَدَيْهِمْ فَرِحُونَ (الروم : ٣٢)

ژباړه: او له مشرکانو څخه مه جوړیږئ [د هغو مشرکانو په څیر] چا چې دین په فرقو [مذاهبو، ډلو او وطنونو] وویشه [او] بیا هره ډله چې له ځان سره څه لري همغه ته خوشحال وي.

ننن د هرې فرقې هر مقلد خپلې فرقې ته خوشحال او خپل مذهب او ډله له نورو افضله او بهتره بولي، که کوم څوک په مونږ اعتراض کوي چې تاسو هم یوه ډله یاست او خپلې ډلې ته خوشحاله یاست نو مونږ بیا دا ورته وایو چې مونږ یوازې مسلمانان یو، هغه مسلمانان چې د صحابه کرامو په څیر د اسلام له نوم سره د ډلو او فرقو هیڅ پسوند او پیشوند نه خوښوي بلکې ټول یوه ډله او واحد امت وي، مونږ د صحابه کرامو

په خیر د هیڅ مذهب او ډلې پسوند او پیشوند د مسلمان له نوم سره نه یو ځای کوو او ځانو ته هم یوازې مسلمانان وایو خو د الله سبحانه وتعالی ددغه کلام مصداق هغه څوک ګرځیدلي چې ځانونه یې په فرقو ویشــلي، فرقې حقې بولي او بیا پخپلو منځو کې همدا فرقې تر ټولو زیات تضادونه او تعصبونه هم پالي او لدې بد تره خبره دا چې دوی بیا په فرقو کې هم په فرقو ویشل شوي!!

الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ ۚ (الأنعام : ١٥٩)

ژباړه: پرته له شــکه هر هغه چا چې خپل دین په فرقو [مذاهبو او وطنونو] ویشـلی او په ډول ډول ډلو تقسیم شوي [ای محمده] ته له دوی سره هیڅ تړاو نلرې.

همدرانګه الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا ۚ وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنتُمْ أَعْدَاءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْــبَحْتُم بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا وَكُنتُمْ عَلَىٰ شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنقَذَكُم مِّنْهَا ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ( آل عمران : ١٠٣)

ژباړه: د الله سبحانه وتعالی په رسی [قرآن او حدیثو] کلکې منګولې ولګوئ او په ډلو [مذهبونو او وطنونو] مه ویشــل کیږئ د الله ســبحانه وتعالی هغه نعمت دریاد کړئ چې په تاســو یې پیرزو کړ، تاســو د یو او بل دښــمنان [بیلابیلې ډلې، تنظیمونه او

وطنونه] واست پداسې حال کې چې الله عزوجل [د اسلام = قرآن او حدیثو په مټ] ستاسو په زړونو کې مینه واچوله او د هغه ذات په مهربانۍ او لورینه تاسو د یو او بل ورونه وروڼه [مسلمانان] شوی او پرته له شکه چې تاسو د اور په کنده ولاړ واست چې الله عزوجل ځنې وژغورلی او پدې ډول الله عزوجل تاسو ته خپلې نښې ښکاره کړې او پکار ده چې ددغو نښو په مټ تاسو ته د خپلې ژغورنې سمه لاره در په نظر شي.

همدارنګه الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا (النساء: ٥٩)

ژباړه: ای هغو خلکو چې ایمان مو راوړی د الله، رسول او ولي الأمر [د ټول امت لپاره د یو خلیفة المسلمین] اطاعت وکړئ او که چیرې مو په کوم څه کې شخړه رامنځته کیده نو [خپله شخړه] الله او رسول [قرآن او حدیثو] ته وړاندې کړئ که تا سو په الله او د قیامت په ورځ ایمان لرئ او پرته له شکه همدا د چارو تر ټولو غوره تدبیر ده.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي چې:

[وستفترق هذه الأمة على ثلاث وسبعين فرقة, كلها في النار إلا واحدة" قالوا: من هي يا رسول الله؟ قال: "من كان على مثل ما أنا عليه وأصحابي ] رواه الترمذي 2641

ژباړه: زما امت به په درې اويا [۷۳] فرقو تقسيم شي، ټولې فرقې به په دوزخ کې وي بې له يوې فرقې څخه، [صحابه کرامو] وويل چې اې د الله رسوله هغه به کومه فرقه وي؟ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې: دا ډله به په هغه لاره روان وي په کومه چې زه او زما صحابه روان دي.

د مذهبونو د بطلان حيثيت د رسول الله صلى الله عليه و سلم لدې مبارک حديث او د الله سبحانه وتعالى د کلام له پورته مبارکو آياتونو ډير ښه ثابتيږي، صحابه کرامو په خالص قرآن او حديثو عمل درلود او په مذاهبونو او وطنونو نه وو ويشــل شــوي، د اســلام په علم کې د لوړې کچې پوهې درلودونکي، فقهاء او علماء په صــحابه کرامو کې هم موجود وو خو د نورو صــحابه کرامو له جملې څخه يو يې هم د کوم عالم صــحابي تقليد د هغه په نوم ونکړ بلکې دوى يوازې مســلمانان وو، د مســلمان له نوم ســره يې د بل هيڅ فرقې پســوند يا پيشــوند نه درلود او په هغه قرآن او حديثو يې عمل درلود چې کامل او بې عيبه دي او د رسول الله صلى الله عليه وسلم له بعثت څخه تر اوسه د هرې زمانې احکام او شريعت شتون پکې لري.

رسـول الله صـلى الله علیه وسـلم فرمایلي چې: الجماعة رحمة والفرقة عذاب [رواه عبدالله بن أحمد في زوائد المسند ۲۷۸/۴، مجمع الزوائد ۱۸۲/۸]

ژباړه: یو ځای والی رحمت ده او فرقې [مذهبو نه، وطنو نه، تنظیمو نه، ډلې ټپلې] عذاب ده.

همدرانګه په یو مبارک حدیث کې راځي چې: قال رَسُـولَ اللَّهِ صَـلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَـلَّمَ خَطَبَ النَّاسَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ: [....إِنِّي قَدْ تَرَكْتُ فِيكُمْ مَا إِنِ اعْتَصَمْتُمْ بِهِ فَلَنْ تَضِلُّوا أَبَدًا كِتَابَ اللَّهِ ، وَسُنَّةَ نَبِيِّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ] رواه الحاكم في "المستدرك" (318)

ژباړه: رسول الله صلى الله علیه و سلم د حجة الوداع [وروستي حج] پر مهال پخپله خطبه کې خلکو ته وفرمایل چې: زه تاسـو ته دوه شیزونه پریږدم، تر څو مو چې منګولې پرې لګولي وي ګمراه به نشـئ چې هغه د الله کتاب [قرآن] او د هغه د نبي سنت [احادیث] دي.

او له قرآن او حدیثو څخه ګڼ شـمیر نور دلایل چې مسـلمانانو ته د یو جسـد او له فرقوي، منطقوي او ورته نورو تعصبونو پرته د هغه څه د پیروي امرونه کوي په کوم څه چې صحابه کرامو عمل درلود نو په تاسو حجت قائم شو او که وروسته لدې هم تاسو په اسـلامي امت کې مذهبي، وطني او قومي فرقې جائزې ګڼئ نو پرته له شـکه چې تاسو به پخپل ځان ډیر زیات ظلمونه کړي وي.

د امارت د دوهم نسل کاروان هم يوازې خپل حنفيت ته په درنه  سترګه ګوري او لکه ځرنګه چې ددغو ګمراهانو تعريف الله عزوجل پخپل کلام کې وکړ دوی پخپله فرقه کې چې کوم څه له ځانو سره لري همغه ته خوشحال دي، په اسلامي امت پورې نسبتي مرتدين نه يوازې دا چې په دين کې څلور فرقې حقې ګڼي بلکې پخپله حنفي فرقه کې يې هم داسې نورې فرعي فرقې رامنځته کړي چې ممکن له ليست څخه يې تاسو ته خندا درشي چې دا څرنګه د تقليد حقانيت شو او دا څرنګه د محمدي امت د پيروي دعوې شوې چې په فرقه کې فرقې؟ هره فرقه بيا يو عالم ته منسوبيدل پداسې شکل لکه دوی يې چې عبادت کوي، داسې فرقې چې يو قوم ته منسوبې وي او داسې فرقې چې جغرافيايي موقعيتونو پورې تړاو لري نو تا سو خپله ووايا ست چې د الله عزوجل د پورته مبارکو آياتونو او د نبي صلی الله عليه و سلم د احاديثو مصداق به آخر څوک ګرځي؟

## تقليد د حنفي علماؤ له اقوالو:

که خبره د تقليد وي او غير مقلدين د معاصرو طالبانو او ترې متأثره شويو حنفيانو له قوله چې ګويا غير مقلدين يا ددوی به خوله وهابيان له کفارو هم بدتر دي نو مونږ مجبور يو چې ددوی د اسلافو له لوري د تقليد د رد يو څو نمونې دلته بيان کړو تر څو تا سو ته وا ضحه شي چې د طالبانو د معا صر حنفيت تر شا د آی ايس آی شيطانان نا ست دي چې حنفيت يې د خپلو پليدو افکارو د تطبيق په مسير کې د د ډال په څير

کارولی او لدې لارې یوازې د مؤمنانو د تفرقې او ددوی په ضـــد د جګړې او مبارزې هوډونه لري.

طالبان د وهابیانو په نوم له مؤمنو مؤحدینو ځکه بیزار دي چې دغه مؤمنان یو له څلورو مذاهبو څخه د یو هم تقلید نه خوښــوي، هر څوک چې د مذهب په نوم له کومې فرقې تقلید ونکړي نو طالبان یې له کفارو هم بدتر ګڼي او هغه ده ګوړئ چې شـیعه مشـرکینو ته د وروڼو خطابونه کوي خو د قرآن او حدیثو د سـوچه عقیدې خلک خپل مذهب ته د ټوپک د شپیلۍ په زور راګرځوي بلکې وژني یې او ډول ډول ظلمونه ورسره کوي.

راځئ چې د پخواني حنفیت په رڼا کې د طالبانو د تقلید حقیقت وپیژنو چې پخوانیو حنفي علماؤ د تقلید او د آی ایس آی د ملیشــو د حنفیت په اړه څه ویلي؟ د تقلید په اړه د څو تنو پخوانیو حنفي علماؤ نظرونه له تاســو ســره شــریکول غواړم چې هغوی ددغې بدمرغۍ په اړه څه نظر درلود؟

- علامه الوســـي حنفي ویلي چې: که چیرې ګمراهي پلار درلودلی نو تقلید به د ګمراهي پلار وو (روح المعاني ۱/۹۷).
- امام أبو جعفر الطحاوي حنفي ویلي چې: تقلید خو صـرف هغه خلک کوي کوم چې متعصب او کم عقل وي (لسان المیزان ۲۸۰ / ۱).

- امام عبدالبر ویلي چې: د اهل علمو پدې خبره کې هیڅ اختلاف نشـــته چې مقلد مطلق جاهل ده. (جامع بیان العلم وفضلة ۲ / ۹۹۲).
- عیني حنفي ویلي چې: که مقلد غلطي کوي او که مقلد د جهالت مرتکب ګرځي نو ددې هر مصیبت وجه تقلید ده. (البنایة شرح الهدایة ۳۱۷/۱).
- زیعلي حنفي ویلي چې: بس مقلد غلطي کوي او د جهالت مرتکب ګرځي (نصب الرایه ۲۱۹/۱).
- أبو زید قاضـي عبید الله الأبوسـي حنفي ویلي چې: د تقلید خلاصـه او حاصـل داده چې مقلد ځان د ځناورو او چهارپایانو سـره یو ځای کوي، (تقویم الأدله في اصول الفقه، صفحه ۳۹۰).
- ســلطان باهور وایي: اهل تقلید جاهل او له ځناورو هم بدتر دي، (توفیق الهدایت، صفحه ۲۰).
- سـلطان باهور بل ځای کې وایي: اهل تقلید د دنیا خاوندان، د شـکایت اهل او مشرکان دي، (توفیق الهدایت، صفحه ۱۶۷).
- حافظ ذهبي وایي: د یو مذهب قید هغه خلک تیاروي ثوک چې د علم له حصـول څخه قاصـر او یا متعصـب وي لکه زمونږ د زماني علماء، (سـیر اعلام انبلاء ۴۹۱/۱۴).

- حافظ ابن عبدالبر اندلســي ويلي: د مقلد او ځناور هيڅ فرق نشــته (جامع بيان العلم وفضلة ۲/۲۲۸).
- قرطبي ويلي: كوم علماء چې تقليد واجب بولي زما په فكر هغوى په قطعي توګه له علم څخه خالي دي (تفسير القرطبي ۲/۲۱۲).
- زمحشـري وايي: كه چيرې ګمراهي مور درلودلى نو تقليد به د ګمراهي مور وه، (اطواق الذهب ۷۴).
- إمام ابو حنيفه رحمه الله ويلي چې: خلک به تر هغه وخته په هدايت وي چې د احاديثو طلب ګار وي، كه چيرې خلک احاديث پريږدي او د بل څه طلب شروع كړي نو ګمراه به شي. (ميزان الشعراني فصل في بيان ماورد في دم الرائي عن الشارع ۱/۷۱).
- او د آی ایس آی له تأسيس څخه مخكې بعضې داسې نور علماء چې تقليد يې تر ټولو بد مرض ګڼلی....

نو وګورئ كله چې تقليد د حنفي علماؤ په نظر هم ګمراهي وي نو دا نني نوي طالب شـكله حنفيان كوم دين ته اوښــتي چې غير مقلدين له بې دينه كافرانو هم بدتر بولي نعوذبالله؟

واورئ ای مسلمانانو چې إمام ابوحنیفه رحمه الله یوه مدرسه وه چې د قرآن او حدیثو تعلیم ورسره کیده خو نن د آی ایس آی په مدرسو کې روزل شوو طالبانو له إمام ابوحنیفه یو بیل دین جوړ کړی چې پخپله خوښه ورته ژمن او په مټ یې د کفارو د وطنیت، جمهوریت او سیکولریزم پلانونه تطبیقوي، هر څوک چې د کفارو راغلی سوغات [جمهوریت، وطنیت، ډیموکراسي، ټاکنې او پارلمانونه] کفر وبولي نو فوراً د آی ایس آی له لوري د حنفیت په نوم روزل شوي خائنان منځ ته راودانګي چې هله دا خوارج، تکفیریان او وهابیان دي.

کفارو د مسلمانانو له همدې ضعیف ټکي څخه په استفادې لدې نوم څخه بیلا بیلې فرقې جوړې کړې او اوس د همدې کفارو سیکولر ملیشې لګیا دي هغه څه وایي او هغه څه خپروي چې له دوی مخکې د حنفي فقهې علماؤ هیڅکله نه وو بیان کړي بلکې وګورئ چې ټولو له تقلید څخه بیزاري ښودلې او دغه عمل ته یې د شرک، جهل او تعصبونو خطابونه کړي او یا اقلاً غیر مقلدین خو یې له بې دینه ډیموکراټانو بدتر نه وو بللي؟

د پاکستان د انګریزي بچیانو یا د همغې آی ایس آی د جاسوسانو له لوري روزل شوي طالبان به هیڅکله اصل دین تطبیق نکړي او هیڅکله به د الله عزوجل خالصې بندګۍ ته څوک دعوت نکړي بلکې دغه د حلوا او د اسقاطونو ګیدړان شرک

او بدعتونه خپروي، په همدې لاره کې ځانونه مرداروي او له همدې لارې خپل باداران خپلو اهدافو ته رسوي.

له طالبانو او ددوی د آی ایس آی له مذهب څخه چې حنفیت ته یې منســوبوي ځانونه لیرې و ساتئ چې دغه خائنان تا سو د دین په نوم د بې دیني په لوري کشوي، راشــئ او اصــل دین او د الله عزوجل خالصــه بندګي د قرآن او حدیثو له لارویانو د صــحابه کرامو په فهم زده کړئ او مه پرېږدئ کفار چې تاســو په وطنونو، فرقو او مذاهبو تقسیم او په منځ کې ډیموکراټیک الحاد درباندې تطبیق کړي.

## جهل څه ته وايي او جاهلان څوک دي ؟

جهل تیارو او ناپوهیو ته ویل کیږي او بې له شــکه چې له اســلام څخه پرته بله هره عقیده، فکر، تګلاره او د حاکمیت ډول جهل او ناپوهي ده چې پدې مرض معاصــر مسلمانان په لوړه کچه اخته شوي، له اسلام څخه ناخبري جهل بلل کیږي او پرته له شکه چې ا سلام په ټوله معنی د قرآن، حدیثو او د صحابه کرامو پیروي ته ویل کیږي خو په معاصـره نړۍ کې د سـواد او بې سـوادي په نوم سـیکولر فرهنګ له خلکو دغه ا صل هیر کړی او هر څوک چې مکتب تر دولسمه ولولي او یا  سیکولر پوهنتون پاس کړي نو دغه کس ته په جامعه کې بیا د ســواد  داره خطابونه کیږي اګر که غیر له اسلامه د بلې عقیدې خاوند وي او اګر که مسلمان وي خو خپل لمونځ یې هم نه وي زده خو هیڅوک د بې سواده یا جاهل خطاب نشي ورته کولی پداسې حال کې چې تر ټولو لوی جهل، لویه تیاره او لویه ناپوهي له اســلام څخه بې خبري او دین ته شــا ګرځول دي چې دغو عاداتو او خویونو ته  سلفو  صالحینو د ایمان د ناقض خطاب هم کړی پدې دلیل چې الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

[وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن ذُكِّرَ بِآيَاتِ رَبِّهِ ثُمَّ أَعْرَضَ عَنْهَا ۚ إِنَّا مِنَ الْمُجْرِمِينَ مُنتَقِمُونَ (السجده : ٢٢)

ژباړه: او څوک به له هغه چا ډیر ظالم وي چې د الله سبحانه وتعالی آیاتونه ورته واورل شي او بیا مخ ځنې وګرځوي؟ پرته له شکه چې مونږ له مجرمانو د انتقام اخیستونکي یو].

علماء کرامو د پورته مبارک آیت په تفسیر کې لیکلي چې تر ټولو لوی ظلم کفر او شرک ده چې یو څوک به یې پخپل ځان لوروي، نو پدې مبارک آیت کې هغو خلکو ته د ظالمانو خطابونه شوي چاته چې د الله سبحانه وتعالی آیاتونه اورول کیږي خو بیا هم مخ ځنې اړوي، خوار یې ګڼي او یا د همدې آیاتو له اوریدو سره سره بیا هم د کفري افکارو، تګلارو او قوانینو پیروي کوي نعوذبالله.

نن په لوړه کچه خلکو الهي آیاتونو ته شا ګرځولې، سره لدې چې الهي آیاتونه ورته بیانیږي خو بیا هم د معاصر جهل په لارو روان او هیڅکله یې د الله سبحانه وتعالی آیاتونو ته توجه ونکړه، نن د پوهې او ناپوهي رنګ له خلکو ورک شوی او هر څوک چې یوازې لیک او لوست ولري نو د پوه او سواد داره خطابونه ورته کیږي او خندنی دا چې د دنیوي یو کسب درلودونکی لکه انجنیر، ډاکټر، وغیره... خو په اعلی سطح پوه او له تیارو لیرې بلل کیږي او بیا که ددغه انجنیر لمونځ هم نه وو زده نو د سیکولر

عاداتو مطابق هیڅوک دا حق نلري چې د جاهل خطاب او د خپلو تعلقاتو د پریکون فیصــله وســره وکړي بلکې نن د خلکو د مینې، محبت، خپلولۍ او دوســتۍ معیارونه همدا سیکولر او غیر اسلامي معیارونه ګرځیدلي چې په رښتیا سره هم دغه عادات او خویونه یو امت له دین څخه ډیر لیرې کولی او بې دیني ته نژدې کولی شي.

نن د خلکو په نزد تر ټولو مقدم او هوښــیار هغه ده چې د جاهلانو په ډیموکراټیکو حاکمیتونو کې یې تر ټولو لوړ مقام خپل کړی وي پداسې حال کې چې غیر له اسلامه نور حاکمیتونه، فیصلې او قوانین الله سبحانه وتعالی د جهل فیصلې بللي او معلومه ده چې پدې مرض ککړ انسانان په لوړه کچه د جهل او تیارو پیروان دي، الله عزوجل فرمایلي چې:

[أَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ (المائده : ٥٠)

ژباړه: آیا هغوی [له تا څخه] د جاهلیت فیصــلې غواړي؟ او څوک به بې له الله څخه هغه قوم ته بهترې فیصلې وکړي چې یقین ولري؟].

د مکې مشــرکان چې تر نن ورځې مونږ د جاهلانو خطابونه ورته کوو په حقیقت کې د ننیو عاداتو په اساس بې علمه یا بې سواده نه وو بلکې دوی به چې کوم شعر ولیکه او بیا به یې د مکې معظمې په دیوال راوځړاوه نو د ادبیاتو په فن به دومره سنبال وو چې په میا شتو میا شتو به چا ددغه شعر ځواب نشو لیکلی، د مکې جاهلان او مشرکان د

هغه وخت له عصري علومو لیرې نه وو پاتې او نه هم د هغه وخت د عصري علومو د لیرې والي له کبله نبي علیه الســلام دوی ته د جاهلانو خطابونه کول بلکې ددوی جهل له اسلام څخه تیښته، اسلام ته په سپک نظر کتل او بې له اسلامه د نورو لارو د غوره کولو له کبله وو چې نن داده وروســته له ۱۴۰۰ کالو هم مونږ هغوی جاهلان، په تیارو او ناپوهیو کې غرق انسانان بولو.

په هر صورت، د ا سلام د کامل دین په ا ساس رو ښانه شوله چې جهل او ناپوهي له اســلام څخه بې خبري، اســلامي پوهې [قرآن، حدیثو او د صــحابه کرامو پیروي] ته شا ګرځول او العیاذبالله ا سلام د نورو عقایدو او افکارو په مقابل کې ضعیف او ادنی بللو ته وایي چې د ارتداد پدې مرض نن په لوړه کچه خلک اخته شوي او پرته له شکه چې خلک د جاهلو فرقو د تقلید، د سیکولریزم د وطنیت د عقیدې، د ډیموکراســي او ټاکنو له امله د جهل دغو کندو ته غورځیدلي.

نني ډیموکراټان مونږ په لوړه کچه جاهلان بولو اګر که دوی ورســره د شــاعري او ادبیاتو په فن کې ماهرین وي خو بیا هم جاهلان دي، اګر که ددغو عاداتو خلک طبیبان وي خو بیا هم جاهلان دي او اګر که ددغو ګمراهو خویونو درلودونکي پوه پوه معماران او انجنیران وي نو بیا هم جاهلان او د تیارو په ګردابونو کې لاهو انسانان دي چې ځانونه یې د اسلام په پریښودلو ملعون ګرځولي، نعوذباالله منها.

## ډیموکراسي او سیکولریزم [وطنیت، ټاکنې، پارلمانونه] عصري جهل ده

له قطر څخه د طالبانو رســمي نماینده‌ګانو په ځلونو ځلونو دا خبره کړې چې په افغانســتان کې انتخابات د اشغال په صورت کې دسیسـه ده او یا په افغانسـتان کې انتخابات د اشــغال په صــورت کې د منلو وړ نه دي او داســې نورې خبرې چې په حقیقت کې د حنفیت په نوم دغو ســیکولر خائنانو انتخابات او ډیموکراســي هیڅکله کفر ونه باله بلکې ژمنې یې وکړې چې مونږ به په افغانســـتان کې په بین الأفغاني او پداسې یو اساسي قانون بناء نظام جوړ کړو چې ټولو جهتونو ته د منلو وړ وي.

د ډیموکرا سي، انتخاباتو او ا سا سي کفري قوانینو په عنوان مونږ پخوا هم په لسګونو مقالې، کتابونه او رســالې لیکلي او د الهي آیاتونو په اســاس مو د معاصــر نوي دین یا همغې ډیموکراســي کفري حیثیت تاسـو ته بیان کړی چې په اسـلام کې بې له کفر او ارتداد څخه بل حکم ورته نشــته، له غرب څخه د رازېرېدلي دغه نوي ملحد دین لپاره چې د اسلام په نوم ملایان او یا طالب ډوله اسلام نماء حشرات تأویلونه ورته کوي، د اجتهادي خطاء نسبتونه او یا یې د عصر ضرورت بولي پرته له شکه چې داسې موزي

چهارپایان د غربي ملحدینو چپراســیان او د اســلام په نوم د همغه الحاد او دهریت تطبیقوونکي دي چې د ا هل ســنتو په منهج کې هیڅ ځای نلري بلکې د ا مت په اجماع دغه ډول خائنان تکفیر شوي مرتدین دي.

که د ډیموکرا سي ا صولو او بنیادونو ته ځیر شو نو ددغه نوي دین تر ټولو مهم ا صل د اکثریت واک ده، دغه ټکي ته غیر م ستقیم د امارت م شران د بین الأفغاني ن سبتونه کوي پداســې حال کې چې الله ســبحانه وتعالی د اکثریت د فیصــلې په اړه فرمایلي چې:

وَإِن تُطِعْ أَكْثَرَ مَن فِي الْأَرْضِ يُضِلُّوكَ عَن سَبِيلِ اللَّهِ ۚ إِن يَتَّبِعُونَ إِلَّا الظَّنَّ وَإِنْ هُمْ إِلَّا يَخْرُصُونَ (الأنعام : ١١٦)

ژباړه: که چیري د ځمکې پر مخ له ډیرو [اکثرو] خلکو اطاعت وکړې نو [ای محمده] تا به د الله ســبحانه وتعالی له لارې ګمراه کړي [ځکه] هغوی یوازې د خپل ګمان پیروي او د اټکل له مخې انګیرنې کوي.

لدې مبارک آیت څخه په اســلام کې د ډیموکراســي د اکثریت واک یا ټاکنې چې د ډیموکراســي د ملا د تیر حیثیت لري د لمر په څیر ځلیږي چې دغه اصــل په حقیقت کې مؤمنان د ګمراهیو او نابودیو په لوري کشــوي او د حاکمیت دغه تګلاره هیڅکله ا سلامي کیدلی نشي بلکې د همدې فکر له راتګ سره سم په افغانستان کې حنفي

علماؤ د رو سانو په ضد او ورو سته بيا د امريکايانو په ضد ددوی د ډيموکرا سي تکفير وکړ او په مقابل کې يې د قتال في سبيل الله فتوا صادره کړه.

د کوم اســاســي قانون د اســلامي کيدلو دعوې چې نن مرتد امارت کوي دا هم په حقيقت کې يو فريب ده، کله چې له قرآن سره موازي د شريعت او قانون يو بل موازي کتاب او د هغه اکثريت په فيصــلو او حکمونو بناء رامنځته شــي چې الله ســبحانه وتعالی منفور بللی هيځکله د اسلامي کيدو خطاب نشو ورته کولی بلکې کوم اساسي او کفري قانون به چې د طالبانو په خوشــه جوړيږي په هغه کتاب کې به هيڅکله له غله څخه د لاس د پرې کيدو حکم نه وي، هيڅکله به د رجم حکم پکې نه وي او هيڅکله به د مفســدينو او قطاع الطريق د وژلو احکام پکې نه وي او دا خبره مونږ په يقين ځکه کوو چې همدا مهال هم طالبان د خپل حاکميت لاندې ســيمو کې هيڅکله د يو غله لاس پرې نکړ، هيڅکله يې زاني رجم نکړ او هيڅکله يې کوم قاتل، مفســد، جادوګر او قطاع الطريق ونه واژه نو دوی چې کله د دوســتم لعين تر څنګ مقامونه خپل کړي آيا دوی به وکولی شــي چې په کامله توګه اســلامي حدود نافذ کړي؟

نو کله چې دغه او په ورته ډول نورې فيصـلې ددوی په کفري کتاب يا همغه اسـاسـي قانون کې اســلامي نه وي نو دداســې قوانينو، شــريعتونو او حاکميتونو په اړه الله

سبحانه وتعالی فرمایلي چې: وَمَن لَّمْ يَحْكُم بِمَا أَنزَلَ اللَّهُ فَأُولَٰئِكَ هُمُ الْكَافِرُونَ (المائده : ٤٤) ژباړه: پرته له شکه، هر هغه څوک چې د الله سبحانه وتعالی په نازل کړل شوي قانون فیصلې ونکړي کافران دي.

او ورته نور داسې آیاتونه چې په امت کې دداسې عاداتو خاوندان تکفیر کړي او رب العزت، رسول الله صلی الله علیه و سلم، مسلمه امت او حنفیت ځنې بیزاره ده او دا خبره هیڅکله زمونږ په زړه کې نه راګرځي چې الله مکره امام ابوحنیفه رحمه الله به هم دداسې یوې غلطې عقیدې درلودونکی او د بغیر ما انزل الله د حاکمیت د متابعت درلودونکی یو شخصیت وو بلکې اوس د حنفیت په رأس کې ولاړ ددغې فرقې د تحریف ګمراهان ډیموکراسي ته تر ټولو زیات لاس په نامه ولاړ دي او هڅې کوي چې د خپل خود ساخته او نوي حنفیت په چوکاټ کې ډیموکراسي اسلامي ثابته کړي نعوذبالله او د ډیموکراسي او پیروانو تکفیروونکو ته د خوارجو، وهابیانو او تکفیریانو نسبتونه وکړي.

بلکې د طالبانو د اول نسل مشرانو په صراحت سره ډیموکراسي ته کفر ویلی او حتی ددوی د دوهم نسل بعضې مداریانو هم له خپل مستقبل څخه په بې خبرې د ډیموکراسي کفر ده نعرې وهلې خو اوس چوپ ناست دي او یوه ورځ یې هم ونه ویل چې ای د امارت په نوم په دوحه کې ناستو خائنانو آیا زمونږ وینې او قربانۍ به آخر د

همغه کفر په منلو پای ته ر سيږي کوم چې تر پرونه زمونږ په نزد منفور وو؟ ددغه ډول منافقينو له جملې څخه په امارت پورې اړوند اســتاد عبدالهادي ده چې د امارت طالبانو ته به يې پخپلو شرعي دورو کې همدا خبرې کولې چې ډيموکرا سي کفر ده او هيڅکله اسـلامي کيدلی نشــي خو نن د امارت په عبادت لګيا او هيڅکله يې رد پرې ونکړ، تا سو کولی شئ چې د ډيموکرا سي په نوم ددغه ګونګ شيطان بيان واورئ او پوه شئ چې د طالبانو نسل بدل او اوس هيڅکله د حنفيت نمايندګي نشي کولی.

که چيرې د معا صرو طالبانو حنفيت د يونان د نـصراني فيلـسوفانو د منطق په ا ساس بناء وي او د قرآن له هر آيت څخه په سـپين سـترګي ځوابونه کولی او ډيموکراســي ته تأويلونه جوړولی شي نو د حنفيت په نوم له دغو جاهلانو مونږ او د امام ابوحنيفه رحمه الله عقيده بيزاره ده او هيڅکله د غربي الحاد دغو مدافعينو ته حتی د مســلمان خطاب هم نشو کولی.

## ډیموکراسي او اهل سنت

د ډیموکراسي په نسبت د اهل سنتو موقف همغه د قرآن عظیم الشأن موقف ده چې مونږ په تیر عنوان کې د نمونې په څیر یو څو آیاتونه د ډیموکراســي د تکفیر په اړه بیان کړل، خو راځئ چې د هغو خلکو له خولې د ډیموکراســي د تکفیر الفاظ واورو چې مســتعار نومونه یې اوس هم طالبان په ځانو ږدي او فخر پرې کوي چې هغوی ته ځانونه منســوب کړي! د ډیموکراســي په اړه أبو مصــعب الزرقاوي رحمه الله فرمايي چې: [والمرشــحون للأنتخاب هم ادعياُ لربوبية والألوهية، والمنتخبون لهم قد اتخذون ار با با و شــركاء من دون الله و حكمهم في دين الله الكفر والخروج عن الاسلام.

ژباړه: پرته له شــکه ټاکنو ته کاندیدان د خدایي دعوې کوونکي دي او هر هغه څوک چې دوی ته رأیې ورکوي بې له شکه چې غیر له الله څخه یې په خدایي نیسي چې د الله عزوجل په دین کې ددوی حکم کفر او له اسلام څخه خروج [ارتداد] ده].

د طالبانو ننی منحرف صف چې ځانونه اهل سنت او حنفیت ته منسوب بولي د آی ایس آی د نشراتي منابعو څخه داسې ذهنیت ورکړل شوی چې د عراق او شام اسلامي دولت د ابومصعب الزرقاوي پر مهال د تائید وړ وو او وروسته له هغه ددغه دولت قیادت فاسد شو او خوارج پرې حاکم شول چې بیځایه تکفیرونه کوي خو د امارت دغه تسخیر شوي، تحریف شوي او فاسد قیادت ته مونږ وایو چې وشرمیږئ او وګورئ چې ټول کاندیدان او رأیې ورکوونکي یعنې په ټوله کې ډیموکراسي ابومصعب الزرقاوي رحمه الله تکفیر کړې او دا همغه کار ده چې له امله یې تاسو نن اسلامي خلافت ته د تکفیریانو او خوارجو نسبتونه کوئ او خندوونکې بیا دا چې د أبو مصعب الزرقاوي رحمه الله کنیه نومونه هم په ځانو ږدئ؟ خو مونږ ستاسو او د نورو ملعونانو د ترټنو هیڅ پروا نه ساتو، مونږ اوس هم د ډیموکراسي تکفیر کوو او پدې کار کې مونږ د هیچا تقلید نکوو او د ابومصعب الزرقاوي تقبله الله خبره پدې ځای کې ځکه د تائید وړ ګڼو چې ددغه مرحوم دغه حکم په قرآن او حدیثو استوار ده چې پدې اړه د الله عزوجل له کلام، د رسول الله صلی الله علیه و سلم او صحابه کرامو له سیرت څخه زیات زیات دلایل موجود دي چې هر مهال د اسلامي خلافت د اعلام او د عامو منا صرینو له لوري د حجت د قائمولو په هوډ تا سو ته اورول شوي خو نشته په تا سو کې اوریدونکي غوږونه او نشته په تاسو کې لیدونکې سترګې او نشته ستاسو په خوله کې ژبې چې حق واورئ، حق وګورئ، حق بیان کړئ او د حق په لوري راوګرځئ.

ابومصعب الزرقاوي رحمه الله هغه شخصیت وو چې په شام او عراق کې د اسلامي خلافت د پیلامې او په ټوله نړۍ کې د مؤمنانو د اتحاد ځلی ځنې جوړ شـو او لله الحمد مونږ نه یوازې دا چې د هغه نوم د خپل ځان لپاره په فخر کنیه جوړوو بلکې د همغو اتلانو په پل مو قدم ایښـی او نن د اسـلامي خلافت د چتر لاندې په موصـل او باغوز کې د صـبر او ثبات نمونې دغه امت ته وړاندې کوو او نه داسـې لکه د امارت د کشـرانو په څیر چې نوم د ابو مصـعب الزرقاوي خوښـوي خو خطاب د تکفیریانو او وهابیانو ورته کوي او خبر نه دي چې د هغه مرحوم مبارزه د څه لپاره وه؟ څه عقیده یې درلوده؟ ولې یې نوم د ملا محمد عمر او اسـامه بن لادن رحمهم الله د موجودیت پر مهال تر دې ځایه راورسید او ولې یې مونږ هم باید ځان ته کنیه کیږدو؟ خو ستاسو قیادت نوم د حنفیت اخلي خو تأویلونه ډیموکراســي ته کوي او لداســې قوم څخه او ددوی له ګمراهیو او رذالتونو څخه مونږ الله سبحانه وتعالی ته پناه وړو او دعا کوو چې ای رب العالمینه مونږ له هغې ګمراهۍ وساته چې له هدایت څخه وروسته وي، اللهم آمین.

نو معلومه شوله چې ډیموکرا سي، انتخابات او کاندیدان د الله سبحانه وتعالی په دین کې کفر او ارتداد ده، که دغه نوي کفري دین ته کوم څوک له حنفیت څخه وراو ښتي وي نو د حنفیت نسـبت نشـي ورته کیدلی او که د شـافعي رح له مذهب څخه ورته ور اوښـتي وي نو د شـافعي د مذهب نسـبت نشـي ورته کیدلی، که د امام مالک رح له

مذهب څخه و اوښتی وي نو د مالکیت نسبت نشي ورته کیدلی او که د امام احمد بن حنبل رح له مذهب څخه وراوښــتی وي نو د حنبلي مذهب نســبت نشــي ورته کیدلی بلکې په دغو څهار پا یانو یوازې او یوازې همغه د کفر حکم کیدلی شـــي کوم چې ابومصعب الزرقاوي رحمه الله لس کاله وړاندې خلکو ته اورولی او حجت یې پرې قائم کړی وو.

## طالب کشرانو او عامو مسلمانانو ته پیغامونه

دغه عنوان مونږ په لســګونو ځله له خپلو اصــداراتو، مجلو، اخبارونو، کتابونو او مقالو نشر کړی خو داسې ښکاري لکه نن چې د طالب کشرانو غوږنه نه وي او اوریدل نشي کولی، د طالبانو کشرانو ته زه خپل پیغام د الله سبحانه وتعالی پدې مبارک آیت پیلوم چې قهار ذات مؤمنانو ته امر کړی چې:

الَّذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُ ۚ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَاهُمُ اللَّهُ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمْ أُولُو الْأَلْبَابِ (الزمر : ١٨)

ژباړه: هغه خلک چې [ټولې] خبرې اوري او بیا تر ټولو غوره خبرو څخه پیروي کوي دا هغه خلک دي چې الله سبحانه وتعالی هدایت ورته کړی او دا هغه خلک دي چې عقل لري.

نو تاسو هم که د خپل اسلام په دعوه کې ریښتوني یاست نو زمونږ پیغامونو ته د زړه په غوږونو غوږ شــئ او فکر پکې وکړئ که چیرې مونږ تاســو ته د الله عزوجل په لوري دعوت درکاوه نو په تاســو ده چې الله ته د تســلیمي ســرونه ټیټ کړئ او که چیرې ستاسـو له قیادت څخه تاسو بغاوت ته هڅول په وهم، بې دلیله خبرو او بې د الله او

رســول صــلی الله علیه وســلم له خبرو په بل څه بناء و نو هیڅکله یې مه منئ، مونږ خپل درې پیغامونه د نصـیحتونو په څیر تاسـو ته لیکو او الله سـبحانه وتعالی شـاهد نیسو چې تاسو ته مو تر خپلې وسې دعوتونه درکړل او حجت مو دربانديې قائم کړ.

## اول پیغام: د تسخیر شوي امارت د رسنیو په شمول دروغجنې رسنۍ مه تعقیبوئ!

تر ټولو دمخه تاسو ته دا خبرداری په کلکه درکوم چې اوس ستاسو په منبرونو مفسدین او فاســقان ولاړ دي او پام چې دوی مو له ځانو ســره د جهنم د اور په لوري کش نکړي، د امارت د رسنیو په شمول ټولې رسنۍ اوس په مستقیمه توګه د غربي کفارو، ســي آی اې او د آي ایس آی له لوري اداره کیږي، کرایي لیکوالان ورته نیول شــوي او ټول هغه څه بیانوي کوم چې ستا سو پخپلو پخوانیو وینو ملنډې وهل وي، ستا سو ویب سایټونه، مشهورې صفحې، د تیلیګرام د چینلونو چلوونکي ټول په پاکستان کې دي او معلومه نده چې دوی ته څوک معاشــونه ورکوي؟ څکه ددوی د دښــمني ټول تمرکز یوازې او یوازې د ا سلامي خلافت په لوري راڅرخیږي نه د ډیموکراټیک کفر او سیکولریزم په لور، الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن جَاءَكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَإٍ فَتَبَيَّنُوا أَن تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ (الحجرات: ٦)

ژباړه: ای هغو کسانو چې ایمان مو راوړی! که چیرې کوم فا سق تا سو ته خبر راوړي نو په اړه يې تحقیق وکړئ هســـې نه چې بلې ډلې ته په ناپوهي زیان ورســوئ او بیا پخپلو کړنو پښیمانه شئ.

د امارت او سنی رسنی د حنفیت په نوم سیکولر افکار په تا سو کې ترویجول غواړي او له تسـلیمي سـره مل تاسـو ته د فتحې دروغجنې خبرې په غوږونو کې درکوي تر څو تاســو ټول په تســخیر شــوي امارت پورې ځانونه تړلي پرېږدئ او بیا په یو ځل ټول د امریکې د ډیموکراسي په پروژه کې ورمنحل شئ.

د امارت رسنی همدا مهال تر ټولو زیاته خبره همدا کوي چې طالب کامیاب او امریکه ماته شوله خو آیا کله مو هم له ځانو دا سوال کړی چې ستا سو مبارزه د څه لپاره وه؟ آیا دا ســوال مو له ځانو کړی چې ســتاســو وینې د کوم هدف د لاســته راوړلو لپاره وبهیدلې؟ که چیرې له افغانســتان څخه د امریکایانو تګ پداســې حال کې د اسـلام کامیابي وي چې دلته ډیموکراټیک او په سیکولر اصولو بناء یو وطني نظام قائم وي نو ولې ا سامه بن لادن د پاکستان خلکو ته د پاکستاني نظام په ضد د قتال في سبیل الله ترغیبونه کول؟ آیا په پاکستان کې امریکایانو شتون درلود او اسامه بن لادن هلته د امریکایانو د وژلو ترغیبونه کول او که د پاکســتان د ســیکولر او ډیموکراټیک نظام په ضد د قتال في سبیل الله ترغیبونه؟

که چیرې تاسو په افغان ډیموکراټیک حکومت کې ورمنحل شئ او ستاسو تګلاره د پاکستان د نظام په څیر سیکولر او دلته قائم کړل شوی نظام بین الأفغاني وي نو آیا دا سې یو څوک به بیا هم پیدا نشي چې ستاسو او ورسره ستاسو د ورونو د وژلو لپاره ستاسو په ضد د قتال في سبیل الله غږ په اسلامي امت وکړي؟ عیناً لکه اسامه بن لادن چې د پاکستان په خلکو د پاکستان د نظام په ضد د جهاد فتوا ورکړه.

تاسو په ډیر حساس پړاو کې قرار لرئ او په الله قسم که چیرې تاسو غیرت وکړئ نو د کفارو هغه پلانونه چې د طالبانو په ضـد یې د امارت د قیادت په همکاري طرح کړي ډیر په آسـاني شـنډولی شـئ، تاسـو ته صـلح دومره ژر نده راتلونکې بلکې د قطر دفتر وروسته له هغه تأسیس شو چې ستاسو رسنۍ په بشپړه توګه د کفارو لاسو ته ولویدلې، اوس د قطر د دفتر په مټ یوازې او یوازې تمثیلي ډرامې او ســتاســو د فکري روزنې مواد نشریږي تاسو ته د ډیموکرا سي په لور تش ذهنیتونه درکول کیږي خو د صلحې په نوم ستاسو تسلیمي به هغه مهال تر سره کیږي چې ستاسو په ټول صف کې له کلو او کورونو نیولې تر غرونو یو هم داســې څوک پاتې نشــي چې له ډیموکراســي ســره حساسیت ولري او په تاسو کې یو هم داسې څوک پاتې نشي چې د اسلامي نظام د قیادم هیله په زړه کې ولري بلکې هغه مهال به دغه تسلیمي تر سره کیږي چې تاسو د پاکســتان د نظام د ملایانو په څیر همدې ډیموکراټیک نظام ته د اســلامي نظام

نســبتونه وکړئ او تر لاندې جنګیدل یې جهاد وبولئ عیناً لکه نن چې د پاکســتان د مرتد نظام فوځیان د جهاد په نوم د ډیموکراسي تطبیق ته ملا تړلې ده.

نو هو ښیار شئ مخکې لدې چې د امارت له رسنیو دومره ګمراه کړل شئ چې نور د حق او باطل توپیر هم درڅخه ورک شــي، هوښــیار شــئ مخکې لدې چې عقلونه، جذبې او احساسات مو د قطر د دفتر په مټ په ځنځیرونو در وتړل شي او هوښیار شئ مخکې لدې چې هغه مهال مو و سلې هم له لاسو واخیستل شي او د مرتد اردوغان په څیر یوازې د نمایش لپاره د اسلام نوم پداسې حال کې درباندې کیښودل شي چې په اسرائیلو به یخې اوبه اورورئ او په مؤمنانو اورونه!

تاســو ته د أســامه بن لادن، أبو مصــعب الزرقاوي، حکیم الله محســود او د نورو ټولو صادقینو عقیده د وهابیت په نوم درپیژندل کیږي او پرته له شکه چې د امارت رسنۍ د کفري افکارو په ترویج غواړي چې تاسو له الله څخه لیرې او د ډیموکراسي په لوري نږدې کړي نو ویښ او بیداره واوسئ او د هر چا په اړه قضاوت د سیکولرانو د رسنیو په اساس مکوئ بلکې تحقیق وکړئ او وګورئ چې اسلامي خلافت له تاسو څه غواړي؟ بالمقابل عباس ستانکزی له تاسو څه غواړي؟ آیا ومو نه لیدل چې له بي بي سره سره یې په مرکه کې یې وویل چې زمونږ په نظام کې به ښځو ته ســیکولر او له نرانو ســره برابر حقوق ورکړل شي؟

پوهيږو چې په تاسو کې بعضې هغه خلک چې په حقيقت پوهيږي په دوو برخو وېشل شوي او له دوو وجوهاتو په امارت کې پاتې کېدل ځانو ته جائز بولي:

١. هغه چې د امارت د قيادت په انحراف په زړونو کې قانع دي خو ځان ته پدې خبره اطمنان ورکوي چې زمونږ د مشرانو حساب الله سره ده، مونږ په نورو خبرو کار نلرو مونږ يوازې اطاعت ته مسئول يو باقي هغوى پوهېږي او الله يې.

٢. هغه خلک چې د امارت د قيادت په انحراف پوهيږي خو د طالب په صف کې پاتې کېدل پدې دليل خوښوي چې مونږ د مشرانو امر څه کوو؟ هره خبره يې چې د دين خلاف وه نه يې ورسره منو، مونږ خپل جهاد کوو او اجر يې له الله غواړو.

اول: هغه چې د خپلو چارو مسئوليت د خپلو مشرانو اوږو ته اچوي، فکر کوي چې زمونږ د اعمالو مسئولين هغوى دي او مونږ يوازې اطاعت ته مسئول يو سره لدې که د ګناه امر هم راته وکړي او سره لدې که زمونږ په وينو د باطل بنيادونه خړوبيږي نو ددوى حکم د الله عزوجل په کتاب کې بيان شوى چې:

اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَٰهًا وَاحِدًا ۖ لَّا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُونَ [سُورَةُ التّوبَة : 31]

ژباړه: دوى خپل عالمان او روحانيون [مشران] له الله پرته په خدايي نيولي وو او همدغه راز مسيح (ع) د مريم زوى يې هم پداسې حال کې چې دوى ته له يو معبود

(الله) څخه پرته د بل هیڅا د بندګۍ کولو حکم نه ؤ ورکړل شــوی، هغه ذات چي له هغه پرته بل هیڅوك د عبادت وړ نشــته، د هغو مشــرکانه خبرو څخه پاک دی چي دوی یې کوي.

نو پرته له شــکه نن دغه ډول طالبانو هم د یهودو او نصــاراو په څېر د خپلو علماؤ او مشــرانو عبادت شــروع کړی ځکه هغوی که حلال ورته حرام کړي دوی یې اطاعت کوي او که حرام ورته حلال کړي بیا یې هم اطاعت کوي، که ددوی مشــران د دین حکم ورته منسوخ او یا بدل کړي دوی یې بیا هم په پټو سترګو مني او بدتره لدې چې خپل همدې کفر او ګمراهي ته د اسلام او قتال في سبیل الله نوم هم ورکوي.

نو د طالب کشرانو دغه ډله پرته له شکه په ګمراهي کې اخته ده، د یهودو او نصاراو صفتونه پکې ظاهر او د خپلو مشرانو عبادتونه کوي.

دوهم: هغه چې د طالبانو په صــف کې د مرتد امارت د لائحې، اصــولو او ګمراهیو د چتر لاندې خپل ځانونه له امارت څخه جدا شمېري هېڅکله به له دوی جدا ونه ګڼل شي ځکه دوی مجبور دي چې د مرتدینو په کفري ا صولو عمل وکړي، پخپلو وینو د کفري اصولو تطبیق ته لاره هواره کړي او خپل ګمراه مشران پخپلو وینو شومو اهدافو ته ورسوي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي چې:

عَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ [رواه أبو داود]

ژباړه: له ابن عمر څخه روایت ده چې ر سول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: هر څوک چې له کوم قوم سره مشابهت وکړي نو د هغوی له جملې به حساب شي.

نو تاسو نه یوازې دا چې د مرتد امارت له گمراهانو سره مشابهت لرئ بلکې عملاً په یوه صف کې ورسره جنگېږئ نو تاسو څرنگه ویلی شئ چې زمونږ حشر به د قیامت په ورځ له دوی سره نه وي؟

هوښیار شئ ای د طالب کشرانو!

تاسو پخپلو وینو سوداگانې کوئ، دا به هسې یوه سطحي غلطي نه وي چې بل ځلي يې جبران کړئ بلکې تاسو به وژل کېږئ او ستاسو اعمال به لدې دنیا قطع کيږي نو آیا نه غواړئ چې له هغو فاسقانو ځانونه جدا کړئ چې د ډیموکراسي کفري قوانینو، د ښځو سیکولر حقوقو او د نړیوال دجال وطني اصولو ته ژمنتیا ښیي؟

له الله ووېرېږئ، د خپلو مشـرانو عبادت او د ظالمانو تر څنگ په اوسـېدا کې له دوی سره مرسته مکوئ، راشئ او له اسلامي خلافت سره بیعتونه وکړئ تر څو وینو مو له وطني او سیکولر اصولو په بغاوت په ټوله نړۍ کې د اعلای کلمة الله لپاره وبهیږي.

## دوهم پیغام: له ګمراه امارت څخه فاصله ونیسئ:

مونږ پدې کتاب کې په کافي توګه د امارت انحرافات او ګمراهۍ چې د ارتداد تر پولو رسیدلي تا سو ته وا ضحې کړې او په الله قسم ورو سته لدې په تا سو له امارت څخه بغاوت داسې واجب شوی لکه په اول کې چې په ملا محمد عمر ستاسو راټولیدل لازمي وو ځکه په ملا محمد عمر یا اسامه بن لادن رحمه الله خلک د الله لپاره راټول شوي وو او دا چې هغوی د الله په دین حکم کاوه او ا سلامي شریعت یې له سیکولر اصولو ورآخوا یوازې او یوازې د الهي قانون په چوکاټ کې تطبیقول غوښتل نو پدې کې هیڅ شک نه وو چې په هغو صادقینو ستا سو راټولیدل د الله د عبادت له کبله وو خو اوس په تاسو د امارت له دوهم نسل څخه بیزاره کیدل او بغاوت کول د الله له لوري او بیا هم د همغه الله داسې عبادت ده لکه پرون چې پرې راټولیدل د الله عبادت وو ځکه هغه مهال ملا محمد عمر او اسامه بن لادن د الله په حکم فیصله کوله او نن د همغه صف دوهم نسل په طاغوتي فیصلو حکم کوي چې له داسې خلکو سره د مؤمنانو پاتې کیدل له عقل او هوښیاري ډیره لیرې خبره ده ځکه الله سبحانه وتعالی فرمایلي چې:

وَلَا تَرْكَنُوا إِلَى الَّذِينَ ظَلَمُوا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ اللَّهِ مِنْ أَوْلِيَاءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ (هود : ۱۱۳)

ژباړه: او پر ظالمانو تکیه مکوئ چې اور به تاسو راونغاړي [که چیرې تاسو ددوی لوري ته ورکاږه شوی] نو تاسو به هیڅ کوم دوست او سرپرست [د حشر په ورځ] ونه مومئ چې له الله څخه مو وژغوري او له هیڅ ځای څخه به تاسو ته مرسته ونه رسیږي.

## دریم پیغام: د اسلامي خلافت سیوري ته پناه راوړئ!

ای د طالب کشرانو!

صحیح ده چې نن د آخرې زمانې له تورو بیرغونو سره لوزې، تندې، زخمونه او ابتلاګانې دي، صحیح ده چې زمونږ مؤمن مجاهدین له دجالي نعمتونو لیرې دي او روږه په اوبو نیسي او په اوبو یې ماتوي، صحیح ده چې مونږ د دجال له هغو نعمتونو بیزاري ښودلې چې په مکر او فریب د سره صلیب په نوم زمونږ زخمونه مداوا کړي خو په الله قسم چې د الله عزوجل خالص دین او د الله عزوجل خالصه پیروي هم د فتنو او د کفر د غلبې پدې زمانه کې د همدې غرباؤ په سنګرونو کې موندل کیږي چیرې چې دوی له لوږو، تندو او بې درمله زخمونو سره سره د نړیوال کفر کروز توغندیو ته سینې سپر کړي.

څه فکر کوئ چې مونږ به له تاسو څه غواړو؟ آیا پدې کتاب کې مونږ بې د الله او د رسول صلی الله علیه و سلم له لارې د بلې لارې دعوت درکړ؟ نو مونږ به له تاسو څه

غواړو او عباس سـتانکزی او دار او دسـته به یې له تاسـو څه غواړي؟ هغه څوک به له تا سو وغواړي چې د ښځو په سیکولر حقوقو شخوندونه وهي او د امریکې د حفاظت تضمینونه پداسې حال کې کوي چې زمونږ مؤمن امت له افغانستان څخه بهر شپه او ورځ د همدې وحشیانو له لوري کړیږي او وژل کیږي.

مونږ تاسـو ته د هغه چا خبرې هم دریادې کړې چې تاسـو یې په نومونو افتخار کوئ، مونږ د همغو خلکو له خولو تاسـو ته د همغو اتلانو عقیده بیان کړه کومه عقیده چې د نني امارت په قاموس کې د تکفیریانو او خوارجو عقیده ده نو تاسـو خپل سـرپرسـتان څوک ټاکلي او په چا مو اعتماد کړی چې په پټو سترګو ورپسې روان یاست؟

بس ده نور زیات لیونتوبونه وشـول، بس ده نور مو خپل غوږونه زیات کاڼه، سـترګې زیاتې ړندې او خولې زیاتې ګونګې و ساتلې، که خبره په رښتیا هم د الله او د قتال في سـبیل الله وي نو په الله قسـم چې تاسـو ته ټولې خبرې مونږ د الله او د رسـول صلی الله علیه و سلم د ار شاداتو په رڼا کې رو ښانه کړلې، ستا سو د م شرانو عقیده مو درته بیان کړه او د اوسـني امارت د حنفیت په رد کې مو کافي عنوانونه د قرآن، حدیثو او د امام ابوحنیفه رحمه الله په شمول د سلفو صالحینو له سیرته درته بیان کړل، په الله قسـم چې تاسـو بې لدې چې له خپلو خیټو دلایل او خبرې بیان کړئ نور هیڅ هم نه دي درپاتې، وګورئ مونږ سره لدې تا سو د عزت، سرلوړي او کامیابي په لوري دعوت

کوو چې تا سو مونږ ته زیاتې بدې ارادې لرئ، مونږ ستا سو لپاره هغه څه خو ښوو کوم مو چې د ځانو لپاره خوښ کړي او د ځان لپاره مو دا خبره ډېره خوښــه ده چې الله راڅخه راضي شي او جنت ته مو داخل کړي، نن همدغه آرزو مونږ ستا سو په نسبت هم لرو او ډېر حرص لرو چې تا سو د کفارو په مکرونو دوکه نشئ، وینې مو ضایع نشي او دنیا او آخرت مو برباد نشي.

د الله لپاره خپل ســرونه په ورکو، نامعلومه او کفري اهدافو د دین په تش نوم مه ځاروئ بس ده ځانونه مو د جهل په تیارو کې زیات ډوب کړل او له حده زیات مو ځانونه په لیونتوب، جهل او ناپوهي پداســې حال کې معذور وګڼل چې تاســو نه لیوني یاســت، نه ناپوهه او نه جاهلان بلکې ښــه پوهیږئ خو د تریخ حقیت هضــمول درته سخت شوي او د شیطانانو په اشارو لګیا یاست د هغه چا پیروي کوئ چې هیڅ اړخ یې له اسلام سره سمون نه خوري بلکې تا سو ښه پوهیږئ خو ځانونه مو ناپوه اچولي او په لوی لاس مو د جهل په تیارو کې ځانونه لاهو کړي.

زمونږ او ستا سو هدف د اعلای کلمة الله وو او د اسلامي خلافت د مجاهدینو اوس هم همدا هدف ده نه وطني او ســیکولر هدف، تاســو ته دریادوم هر مهال به همدې امارت د خپل فلم په ابتداء کې همدا آیت لیکه چې [وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ] خو نن یې همدا عهد او وعده تر خپل وطن او خپلې ســیکولر

خاورې محدوده کړه او په واز کومې اقرار کوي چې مونږ به تر هغه مهاله جګړه کوو تر څو چې افغانستان نه وي آزاد شوی او آزادي هم داسې آزادي چې په اساسي قانون بناء د یو حاکمیت لاندې راټول شئ، ښځو ته سیکولر او له نرانو سره برابر حقوق ورکړئ او هغو مرتدینو ته د ورورۍ لاس ورکړئ چې د دین په امر کې له تاسو سره وجنګیدل، له کفارو سره یې د ملا محمد عمر په ضد لاسونه یو کړل او تاسو یې له خپلو کورونو وشړلی خو تاسو بیا هم د خپلو خواخوږو نسبتونه ورته کوئ چې دا خبره په روښانه د الله عزوجل له اوامرو سره په ټکر او یوازې او یوازې د سیکولریزم او کفري عاداتو دردونه دوا کولی شي او پدې اړه مو ستاسو له مشرانو هم کافي خبرې په تیرو عنوانونو کې رانقل کړې چې ستاسو مشران به هغه وخت جګړه بس کړي چې افغانستان آزاد شي پداسې حال کې چې فتنې به باقي وي نو آیا دغه حالت او ستاسو او سنی جګړې او قربانۍ د الله سبحانه وتعالی له پورته مبارک ایت سره ټکر او تضاد نلري؟

نړیوالو غربیانو ستاسو د خپل قیادت په مټ له اسلامي خلافت سره د ښمنیو ته په خنددونکو خبرو ژمن کړي یاست او په خیالي خبرو یې زمونږ او ستاسو تر منځ درز ایجاد کړی، سره لدې چې ستاسو قیادت د سیکولریزم او ډیموکراسي اصول منلي خو بیا هم ځانو ته د حنفیت او مونږ ته د وهابیانو په نسبتونو تاسو له اسلامي خلافت او اسلامي نظام څخه لیرې ساتي او د کفر دغه غلامان او جاسوسان د کفارو په اشارو

د امت او خصو صاً د جهادي  صفونو د تفرقې کو ششونه کوي پدا سې حال کې چې پرون د هر مذهب پیروان په یوه لاره روان او لیرې له شرکي عاداتو، بدعاتو، خرافاتو او د ایمان له نواقضو یو بل ته یې د وروڼو نسبتونه کول.

نو زمونږ خبرې د زړه په غوږنو واورئ او بیا یې د خپل امارت له قیادت سره مقایسه کړئ او وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ قَالُوا سَمِعْنَا وَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ (الأنفال : ٢١)

و صلی الله تعالی علی خیر خلقه محمداً و علی آله و صحبه اجمعین

محرم - ١۴۴١

عبدالصبور کندهاري